# راته زنګيرېږي به د فکر په درياب کې لاهو
# او دريادېږي به نامراده د ځواني خيالونه

کوټه

۱۹۸۸/۱۰/۱۱

(۱) ګوډ غازي د کندهار هغه قهرمان مجاهد او پهلوان شهيد دی چې په کندهار کې داسې غوږ نسته چې د نوموړي له نوم او کارنامو سره اشنانه وي.

# ژوند

ژوند تلاش دی پر مخ تلـه دی
حـرکـت دی، خــوځـېـده دي
د تـیـارو روښـــانـــول دي
سـوځــــیـــده دي ویـلـېده دي

د هستی پــه مســـته غېږ کـې
د نـېـستیو هــیـــرول دي
لـه ساړه ساحـلــه تېښـتـه
پــه تــوپــان کـې اوسېـدل دي

د ژونـدي تـلاش پـــه لار کـــې
ژونــدی غـاړې نـــذرول دي

## ورکه مینه

هرخه - هرخه پرېښودل دي
له سکوته راوتل دي

نه نشه ده نه خمار دی
نه خمونه تشول دي
لحدونه رنګول دي
د محشر برپا کول دي

کابل

۱۹۷۹-جولای

# اوښکې

څه تودې تروې اوبه دي
د ګرېوان په لور بهېږي
ابدي سکون ته درومي
له ژوندی سترګې بېلېږي

له هر څاڅکي سره مله وي
د مرموز جهان ږغونه
پر آشنا لارو وراخلي
نابلده قدمونه

د کمزورۍ دنیا ژبه
د قدرت پښو ته ورلوېږي

## ورکه مېنه

د احساس بیده نغمه ده
په بانو ږغول کېږي

دا شریکه ګونګې ژبه
هرې سترګې ته آشنا ده
دا د هرې مینې کور دی
دا د هر نفرت غوغا ده

کابل

۱۹۷۹-جولای

# بنسکلا

چې په زړه د طبعت کې
هنګامه د عشق برپا سي
د قدرت د ناز له بحره
د هنر قطره جلا سي

چې د حسن د بت ګوتې
د اعجاز بربط آغاز کې
زمزمه سي، ترانه سي
اشکاره د جنون راز کی

چې د رباب د خلقتونو
د احسان پر خپو راسي

## ورکه مېنه

په موجونو گردابو کې
د تحسین ځاځکي پیدا سي

دا شعر سومنات دی
دا کعبه ده د خیالونو
دا ښایست دی دا ښکلا ده
دا سروش د هنرونو

کابل

۱۹۷۹/سپتمبر

# مرګ

د سکون په ورکه غېږ کې
د مستيو ډوبېده دي
د عدم پر تياره لاره
د هستيو ورکېده دي

د کاروان په هر رباط کې
مسافر له پښو پاتېږي
دا نيمګړي سفرونه
بې ثمره شان ختمېږي

څوك د ځمکې زړې کېږي
څوك په اورکې سوځل کېږي

## ورکه مېنه

څوك پــه مرګ ژونـدي پـاتېږي
څوك پـه ژونـد له چــا هېرېږي

د زمـــان اژدهـــــا وخـــوري
يـــو لـــړۍ د حـــوادثـــــو
د لحـد پــه نــامــه پرې کـــي
يـــو ډولـــــۍ د حـــواد ثـــو

کابل

۱۹۸۰/مارچ

# زما شعر

د زمان په هېرو شپو کې
يوه ورکه حادثه ده
د هستۍ په دريابو کې
يوه تږې زمزمه ده

د خمارې مستۍ خروښ دی
د مستۍ د خمار شپه ده
يو ګونګی شانې فرياد دی
يو خاموشه ترانه ده

## ورکه مېنه

مجموعې مقدمه به مې د سوز او ساز له سوځنده سندرو او د مينې او درد او هيلو ماتم له رنګينو شعرونو نه جوړه کړې وای.

اما اوس څه چې تيار، هغه د يار

پوهاند ډاکټر حبيب الله تږي

واشنګتن د١٩٨٨کال د اکتوبر ١٣

## ورکه مینه

یو ترتلی اسویلی دی
یو ځپلي خاطره ده
د جنون د اوښکو لاړدی
د باکوس د خم څپه ده

خزاني سرکوب وهلي
ځوانیمرګه هنګامه ده
د یو لیري جرس ږغ دی
نا آشنا غوندي نغمه ده

د مړ ژواندي لمبي کور دی
د بي سازه نغمي شور دی
د شهباز د ماتم رقص
د نیمګړي اوښکی اور دی

## ورکه مبنه

د ژوندون پر بیدو کربنو
یو کاروان دی د خیالونو
د شاهد په خوله داستان دی
د ژوندیو تاراجونو

کابل،

۱۹۷۹/سپتمبر

# پښېمانه به سي

ګوره ښایستې نجلۍ پښېمانه به سي
خوله تر قیامته څوك خولګۍ نه بولي
دا بې انصافه، دا هېرجن خریدار
پرونۍ ښکلې ناوکۍ نه بولي

څوك یې واوښکوته هم نه ورګوري
هغه کتو کې چې رمزونه نه وي
ځای یې د شعر په څپو کې نسته
چې د ځوانۍ پکښې موجونه نه وي

کله چې واوړي د زمان پر ګوتو
دا د سېلیو په شان تېز کلونه

# ورکه مېنه

کلـه چــې وغـــورېـــږي نوې ځوانۍ
او تــا تــه پــاتــې سي خالـي نکلونـه

نـور بــه دې اوښـکـې مـرغـلـرې نه وي
نـاز په دې هم ځـوك تـوسـولای نه سي
د تــودې غـبـږې ګــرمـه مـیـنـه بـه دې
د چـــا اورونـــه ســـړولای نـــه ســـي

پر سـورکـۍ شونډو به دې ورك تـبسُـم
زاړه دردونـــه هـــېـــرولای نـــه ســـي
د بـاڼـو غــشـي بـه دې پـڅ وي هـلـتـه
د خــلــکـو زړونـه بـه پـېـیـلای نه سي

پـر سـپـیـنـه غـاړه بـه دې توري ځوڼې
راتـاوېـــدلای زنـګـېـــدلای نـــه ســـي

## ورکه مینه

د ناڅاپي کتو یادونه به دي
د چا خوبونه ویښولای نه سي

ستا به هم زماپه شان ځواني تېره سي
ستا به هم ما غوندې مستي هېره سي
ته به هم یاد کې د ځوانۍ خوبونه
په ژوندانه به دې هستي هېره سي

ګوره ښایستې نجلۍ پښېمانه به سې
خوله تر قیامته څوك خولګۍ نه بولي
دا بې انصافه، دا هېرجن خریدار
پرونۍ ښکلې ناوکۍ نه بولي

کابل

۱۹۸۰/نومبر

# بغاوت

سوځوئ د مینې نښې
هېروئ پردي یادونه
رنګوئ د تقوا خونې
ماتوئ د اور خمونه

رندوئ د زاهد سترګې
ورخراب کئ خلوتونه
پرېکوئ د ساقي ګوتې
چې ونه ویشي جامونه

څځوئ مالګینې اوښکې
لمدوئ د ګرېوان لارې
د ژوندون په رمزچې پوه وي
په هستۍ کې نېستۍ څارې

## ورکه مینه

ښخوئ سر کښې هیلې
سوځوئ د امید پلونه
ماتوئ د شیطان د اړې
ورانوئ د زاهد خونه

د نړۍ له رنګه تښتئ
په دې رنګ کې دو رنګي ده
اهریمن زیتون په لاس دی
دعدن نګهباني ده

د زقوم د زهرو څاڅکي
د سوما له بوټو څاڅي
نامردي نه ده نو څه ده
په ډک خم کې خمار ناڅي

# ورکه مېنه

خرقه پوش ساقي سنګسار سو
د مينوش زاهد په کور کې
د ګناه سکروټې سوځي
د پرهېز په ساړه اور کې

ځئ ژوندي کفن په ځان کئ
د هستۍ له غوغا تښتئ
د دوږخ لمبو ته ورکئ
دريا لستوڼي سکښتۍ

دا د پټې مينې شور دی
دا د لڅې ګناه زور دی
دا د رنګې آروز رقص
دا د تونډو اوښکو اور دی

## ورکه مېنه

دا بې رقصه پایکوبي ده
دا بې چیغو بغاوت دی
دا بې میو بد مستي ده
بې کتابه عبادت دی

دا د عقل لیونتوب دی
دا د بنګو هوښیاري ده
د ژوندون جنازه اخلي
په کفن کې بد مستي ده

دا د زړه په غورځو واورئ
د مغان د پیر وصیت دی
نن یې نوی خښته کېږدئ
که څه دېر دی که خلوت دی

کابل - ۱۹۷۷/جولای

# بیده خیالونه

هېر که آشنا بېـده خیالو نه هېر که
هېرکه آشنا داویـښ خوبونه هېر که
هغې چې ږنګی سولـې ښـخې سولـې
د هغـــو هـیلو لـحـدونـه هېر کـه

خدای‌دی که ترنګ مې له ربابه وځي
زړه مستي مې پـــه نغمه کې نســـته
خندا بیده سوه اوښکې ویښې سولې
دځوانی‌جوش مې په سینه کې نسته

هغـه چـــې وزمـــولـــېدې ورژېـــدې
هـغـه غـــوټـــۍ د یـــادولـــو نــه دي

# د لوی خدای ﷻ په نامه

شعر الهام دی، د زړه غږ دی او د وجدان پیغام دی، خو دا شعر له ژوند نه رنګ اخلي او د چاپېریال او ټولنې ازانګه پکښې اورو. د شاعر نظر دقیق او تیز بین وی، ظاهر پسند او ظاهر بین نه وي، د ژوند د رنګونو برداشت په بل ډول کوي او د ژوند د پېښو پر یادداشت باندې د فن عملیه تر سره کوي او ناتراشلې ناتوږلي یې نه راخلي. شاعر لکه عطار او د شاتو مچۍ له ګلونو نه عطر او عسل جوړوي او یا لکه ماهر طبیب له عادي اوبو نه آب مقطر.

شعر خدایي داد دی، طبیعي او وهبي دی، کسبي او تعلیمي نه دی، له همدې کبله په هره ژبه کې لومړی شعرونه ویل شوی او

## ورکه مېنه

هغه چې زړونه رغولای نه سي
هغه نغمې د رغولو نه دي

زه د خر مستو د سرکوب نیمه خوا
ته رانه اوس هم پایکوبونه غواړې
زه په ژوندوني ځوانیمرګ سوم دلته
ته مې په وینو کې اورونه غواړې

زه سره ابلیس پر مخ وهلی یمه
زما ښخه هېر سول فردوسي یادونه
زما ښخه مه غواړه تاوده رګونه
زما ښخه مه غواړه یاغي خیالونه

کراچی

۱۹۸۱/نومبر

# زما خزان

ښکلو منم د زړونو ښکار ته وځئ
خو زما زړه د ښکارولو نه دی
ولاړه مستي،ولاړه ځواني تېره سوه
نور مې احساس د پارېدلو نه دی

تاسې به غواړئ زما په مړه سینه کې
مینه ژوندۍ کړۍ پکې شور پیدا کړۍ
غواړئ چې زما په دې ساړه نغري کې
سکروټې ولټوئ اور پیدا کړۍ

غواړئ چې زه هم د زلمیو غوندې
درسره ونځېږم وخندېږم

## ورکه مینه

غـواړئ دا مات زړګی مـې وپـاروئ
درسـره ومســـــېږم و ګـلـه ېږم

زما له ربـاب ښخه مستي مـه غـواړئ
زما پـه ترنګ کې د خــزان افسانـه
زه د امــان لـه ښــاره و کـــوچېدم
زمـا هره اوښکـه د توپان انديښنـه

زمـا د ربــاب تـارونـه وينــې ژاړي
زمـا لـه شـهبازه ښخـه اوښـکـې اوري
زما په نغمه کې د مرګی زګېروی دی
زمـا پـر بستر د لـحد سيوری ښـوري

زه نـابـلـده زه لار ورکـی کـــوچی
دې کـرېليچو نـومـې ځواني ورکه کړه

## ورکه مېنه

زه د څــو ورکــو خـــاطــرو نــکلـــچي
په دې تيارو کې مې هستي ورکه کړه

نــور د پــاولــيــو شــرنــګهــاري سره
خـــېرن لستوني غــورځولای نه ســم
د مرګ غبار مې ژوندی لمر پټ کړی
پــر ځــنــګـدن يم نــڅـېـدلای نــه سم

ښکلو منم د زړونــو ښکــار تــه وځـئ
خــو زمـا زړه د ښـــکارولـــونـــه دی
ولاړه مستي ولاړه ځواني تېــره سوه
نــور مــې احساس د پــارېـدلو نه دی

کابل

۱۹۸۰/سپتمبر

# د سیند لور

یه د سیند لورې غـنم رنګې نجلۍ!
مـړ ژواندی زړه مې تخنولای نـه سـې
زه خو دسـپینو انـګو مـین یم
تـه مـې احساس راویښولای نـه سې

نه دې پـر لـنډه زنـه خـال وهلی
نـه دې پـه غـاړه امـیلونـه ښکارې
نـه دې خپړې پـه نکـریـزو ښـکلې
نه دې په پښو کې پایـزیبونه ښکارې

نـه دې پـرشونډو لیونـی تبسم
نه دې پـه سـترګو کې رمـزونه وینـم

## ورکه مېنه

نه د نخرو ښخه کړه وره وره سوي
نه دې د زړکي قدمونه وينم

ته به ښايسته يې لګولي دې دي
د چاد ميني لېوني اورونه
خو زه د غرونو د هوسيو مين
زما يادېږي ښښتني نازونه

زه ښښتني غېږې لوی کړی يمه
زه ښښتني ميني روزلی يمه
زه سپينو غېږو تمه لوېدلی يمه
زه سپينو لېچو زنګولی يمه

کراچي

۱۹۸۱/نومبر

# هېره مستي

مه يادوه تېرې پخوانۍ کېسې
مه يادوه ماته د ځوانۍ کېسې
هېرې د مستۍ کېسې
هېرې مې کړې هېرې سوې
ماچې بېدولې د مستۍ نشې
ما چې وېښاوه خمار په زړونو کې
زه چې د هر بنګ سره همراز ومه
زه چې د هر ترنګ سره شهباز ومه
زه چې د هر شرنګ د سور آغاز ومه
زه چې ورکېدمه د بنګلا سره
زه چې ډوبېدم په ورکو غېږو کې
هېرې مې کړې هېرې سوې
هېرې سولې تېرې سوې
مه يادوه تېرې پخوانۍ کيسې

## ورکه مينه

مه يادوه ماته د ځوانۍ کيسې
هېرې د مستۍ کيسې
هېرې مې کړې هېرې سوې

* * *

زما د سر نوشت په تورو لارو کې
نسته يوه تته د اميد لمبه
ورك يمه،
لاهو يمه!
مه سوځوه ما په دې يادونو کې
مه ډوبوه ما پر دې خيالونو کې
مه مې توسوه په سرابونو کې
پرېږده چې يوازې يم
وسوځم ايره سمه
وخوري د تيارې ښامار
زما د ژوند وروستۍ وړانګې

## ورکه مېنه

پرېږده د ګمنامي نېکمرغۍ کيسې
مه يادوه ماته د ځوانۍ کيسې
هېرې د مستۍ کيسې
هېرې مې کړې هېرې سوې
پوه سوم چې دا زما د ژوند وروستی غروب
بله طلوع نه لري
لېرې د خونخوار افق په غېږه کې
مه ښايه و ماته د اميد کرښې
يو وار تېر وتلی يم
ژوند خطا ايستلی يم
غېږ کې د شنو پاڼو يې زموللی يم
نور مې پرهارونه د کتو نه دي
نور مې اسويلي د اورېدو نه دي
خپله آشيانه مې سوځولې ده
خپله مې ببېړۍ توپاني کړېده

## ورکه مېنه

ځان مې د ساحل له آرامۍ ښخه
وغور ځاوه لېرى توپانونو کې
ګېر سوم په بې رحمو ګردابونو کې
پرېږده، د زمان نهنګ
پرېږده، دا ظالم صیاد
ورکې کړې د زامې په خرپې کې
زما وروستۍ سلګۍ
نور د جوړېدو نه یم
نور د رغېدو نه یم
مه راکوه ماته سُرابې زېرى
مه یادوه تېرې پخوانۍ کیسې
مه یادوه ماته د ځوانۍ کیسې
هېرې د مستۍ کیسې
هېرې مې کړې، هېرې سوې

کراچی - ۱۹۸۱/نومبر

## ورکه مینه

بیا هغه ته قوانین او قالبونه ټاکل شوي او د بدایعو، صنایعو او ادبي ښېګڼو لټون یې شوی دی. ډېر کسان شته چې د ردیف، قافیې، عروضو، بحورو او ادبي فنونو لوی عالمان، څېړونکی پلټونکي او حتی ټاکونکي دي، خو شاعران نه دي او د شعر لورینه نه ده پرې شوې، البته توك بندي او د یو څو لفظونو نښلول دومره درونډ کار نه دی، خو داسې څه په شعر نه شمېرل کېږي او د شعر واقعي مقام نشي تر لاسه کولای، دا هغو مصنوعي غمیو ته ورته دي چې خلك اوبلك ډېرکوي، خو د الماسو بریښ، توان او متره پکې نه وي.

شعر په یوه خاص حالت کې د شاعر په ذهن کې غزونې کوي او که شاعر یې همغه وخت و نه لیکي نو د شعر دا ښکار یې له ذهن نه الوزي او بل وخت دا توان ورسره نه وي چې هغه څه بېرته و وایي، نو له دې کبله شعر یو هغه خاص کیفیت دی چې لا تر اوسه یې هم د تعبیر او پېژندنې لپاره الفاظ نشته او تر اوسه

# زما کندهاره!

زما کـنـدهـاره د زمـرو وطـنـه!
زمـا د سـرکـښـو پښـتنو وطـنـه!
ځـو نـه یاغي یـې صدقـه دې سمه
د نـافـرمانـو جـنګيالـو وطنه!

بیـا دې تـرنك تـوپـانـی سوی وینم
بیا دې ارغـند پـه مستېدو راغلی
بیـا ارغسان دې بیا مـوجونـه وهي
بیا دې هلمند پـه خروښېدو راغـلـی

بیـا د زړې تـورې د خـرپ یـادونه
بیا دې پـه سترګـو کـې اورونـه وینم

## ورکه مېنه

بیا د "ایوب" سره لښکرې راغلی
بیا د رېډیو داستانونه وینم

لکه چې بیا دې څه یرغل نیت دی
لکه چې بیا دې غورېدو په زړه سو
لکه چې بیا دې څه په زړه کې ګرځي
لکه چې بیا دې خوځېدوته زړه سو

زما کندهاره! د زمرو وطنه!
زما د سرکښو پښتنو وطنه!
څونه یاغي یې صدقه دې سمه
د نافرمانو جنګیالو وطنه!

ستا د پایلوچو تر بګړیو واری
ستا د تېرو تېغونو جنګ وګرځم

## ورکه مېنه

ستا لـه غـرور څـخـه کـاږه تګــونه
ستا قهر وګــرځم ســتاننګ وګرځم

بیا د "ملالې" میــونــدی خرخـښـه
بیا "تورپېکی" د فرنګ خو نه سوځي
بــیا د بــابا د پاني پــت هنګــامــه
بیا "شاه محمــود" اصفهانونـه سوځي

بیا د "ګرګین" پرکور مرګی مېلمه دی
بــیا د "میرویس" په نامه وغـــورېـدې
بـــیا د "اشرف" د انــتـقام لــمبــه ده
بــیــا دې د قــهر ویــنې وخــوځــېدې

بیــا دې لــمــن د شــهــیدانــو ډکــه
بیا د کــوچني غـــازي زانګو زنـګوې

## ورکه مېنه

بیا دې په وریځو کې سېلونه ګرځي
بیا دې په غېږ کې زلزلې ویښوي

زما کندهاره د زمرو وطنه!
زما د سرکښو پښتنو وطنه!
څو نه یاغي یې صدقه دې سمه
د نافرمانو جنګیالو وطنه!

کراچی
۱۹۸۱/دسمبر

# د هستۍ قبر

دا دي راغلل د خزان بادونه ورو-ورو
رژوي مې د ځوانۍ ګلونه ورو-ورو

خود آګاه دخاموشۍ غېږې ته درومي
چې غوغا ته تخنېدل رګونه ورو-ورو

دمرګي قاصد مې غم دمستۍ غواړي
راته ښيي د لحد خوبونه ورو -ورو

چې يې څاڅکی د کوثره سره سيال ؤ
زماني غليم يې وړي خُمونه ورو-ورو

# ورکه مینه

نن د هوښ له دوږخي سينـــې راوځي
مدهوشۍچې پاڅول خيالونه ورو-ورو

چې ژوندۍ وه هر نفس په نوې هيله
له هغې سينې راځي دودونه ورو-ورو

پر ډيوه مې د تيارې پرتم راپرېووت
پکې اورم د مـــاتم ږغـونه ورو - ورو

لـکه هيره دزاړه قـبـر جنـډۍ سـي
هسې هېرسول دمستۍيادونه ورو-ورو

سرنوشت مې غوړولی دمرګ تور دی
پکې شمېرم دهستۍ قبرونه ورو-ورو

کراچی - ۱۹۸۲/جون

# پر دی انګړ

ساقي نن مې په پياله کې جوهر نسته
په ترخو اوبو کې بوی د کوثر نسته

چې د شيخ د سر جنډی يې نخوله
برني تازه اورونه محشر نسته

چې توبه يې په طواف کې ماتوله
د هغه انګاري څاڅکی شرر نسته

چې کوګل داوړدو شپو وربانديې رون ؤ
د هغه يلدا په زړه کې قمر نسته

## ورکه مینه

یا مې بڼ د ځوانۍ لاښ د خزان لاس کړ
یا د تاك په افسانه کې اثر نسته

یا دې نه دی نیښتېځلي سره بخري
یا په غرپ کې د سکروټو ګذر نسته

پوه سوم- پوه سوم ستا لاسونه کوثري دي
چا ویل چې ستا په خم کې ګوهر نسته

خو مستي وه،که هستي دواړې پردۍسوې
د پردیو په انګړ کې اختر نسته

پیښنور

۱۹۸۲/۳/۲۱

# ايږ سالاري

ډېر پخوا دي واقع سوي د انکلو نه
دې کيسه باندې اوښتي دي قرنونه

اوسېد له څو لېوان يوه ځنګله کې
ځيرول به يې ځاروي ضعيف ښکارونه

ښخولې يې په نرمو غوښو داړې
راايستل يې له ژونديو سينو زړونه

## ورکه مېنه

ګرځېدلای په ځنګله کې چېرته نه سوای
که هوسۍ وې که مرغومي کـه پسونه

خو هــر ګوره مــــروروه يــو لــه بله
پيښنيدل بــه هميشه پکښې جنګونه

يو د بل د مرګ پـه طمعـه ګرځېدله
لکــه مړي سره وکـانــدي تــربرونــه

يوه ورځ د ايږ پـه کور کې سره ټول سول
څو لېوان کـاږه منګول تېره غــاښونــه

د ګيدړ په مشوره سره پخــلا ســول
سره هېــر يـې کـړل زاړه عــداوتــونــه

## ورکه مېنه

هم ادیبان او ادبپوهان نه دي توانېدلي چې د شعر لپاره یو کوټلی او ټاکلی تعریف او د دې کیفیت لپاره یو بیانوونکی تعبیر پیدا کړي.

"شعر د خوند لپاره، که شعر د ژوند لپاره؟"

د نقادانو او ادبپوهانو تر منځ یو تود بحث دی خو زه فکر کوم چې شعر تش د خوند لپاره کومه معنا نه لري، شعر په یو نه یو ډول له ژوند سره اړه لري، خصوصاً په پښتو ژبه کې له هماغه لومړۍ پیله شعر له ژوند سره څنګ په څنګ راغلی او نه یوازې زمونږ اوسني شاعران د شعر مضمون ته ارزښت ورکوي، بلکه زمونږ کلاسیکو شاعرانو هم مضمون د شعر اساس او پیکر بللی او ښکلي الفاظ یې د هغه رخت او زېور.

د پښتو نازکخیال شاعر کاظم خان شیدا چې شعر یې هم ښکلی مضمون لري او هم ښکلی بافت او الفاظ، له نن نه دوه نیم سوه کاله وړاندې دا موضوع داسې روښانوي:

# ورکه مبنه

په هوس ويشل کېدلي د ښکار غوښې
له مړوګېدو راووتل تېغونه

هم منګولې هم يې ډکې دواړې زامې
د چا غوړې سوې سرېمې د چا برېتونه

د خوښيو، خوشاليو په مجلس کې
ايرې ولاړ سو ښورول يې بوخ غوږونه

وې: ملګرو! راولاړ سئ غيږ په غيږ سئ
رانېژدې سئ سره ورکاندئ لاسونه

لکه ورونه يو له بله سره خپل سئ
نور ايره کئ د نفاق ظالم اورونه

## ورکه مېنه

هر لېوه چې د اېږ غېږې ته نېژدې سو
اېږ يې تاو کړل پر سينه خپل مړوندونه

په کښې کښنوبه يې ورمات کړله هډوکي
له سينې به يې را وختل آهونه

هر لېوه سر په خېړو په زګېروی سو
تېرول به يې په پتمه خپل دردونه

وروسته اېږ ويل ملګرو کار تمام دی
اوس په کار دی مشر ورور پاخه فکرونه

د مجلس له کونجه ږغ وکړ ګيدړې
سيال دې نسته در خالي سول ميدانونه

## ورکه مېنه

مبارك دې مشرتوب او پاچهي سه
زموږ دې مات کړل دشمزيو ټينګ هډونه

ته د تخت په نوم نازېږه هوسېږه!
موږ ته جوړ سول په ژوندوني لحدونه

که زموږ خوښه وي که نه وي ته سلطان يې
چلوه پر هديره باندې حکمونه

پېښور

۱۹۸۲/۵/۱۸

# لېونتوب

راســه مــات کــړه لـېونـتوبـه دا د عـقل تدبيرونه
د عــدن لــه بــاغـه وځم را نصــيب کــه دوږخـونـه

چــې د هــوښ قــالب ته لوېـږي دآدم دعدم خښتې
راتـه ښيـه د نيستۍ لارې چې هستي ده له جنـونه

چې د عـقل تـرازو دی د ښـکلا د نيستـۍ فـکر
خدايه مـه کړې را پـه بـرخـه دا بدرنګه تدبـيرونـه

چې ريأ پکښې سوځـېږي چې پرهېزپکې ايره سي
هغـه سـوی لـړمـون غـوارم هغـه سـوځـنده اورونه

## ورکه مینه

چې تقوا پکې لمبه سي،چې توبه په پکښې بیده سي
په ازل کــې مــې آزاد کــه د هوښیارولــه قانونــه

چې خوښي پکښې ژړېږي چې خندېږي پکښې اوښکی
چې حیات پکښې بیدېږي، چې ویښېږي تابوتونه

چې ځواني پکښې رژېږي،چې خزان پکښې غوړېږی
نــا اشنــا ســفر کــومــه نــابلده ربــاطــونــه

چې داستان مې پکښې ورك سي دژوندون دښواوبدو
پــی کــومــه هغه لارې د مجنون بیا بــاني پلــونه

پېښور

۱۰/۱/اکتوبر/۱۹۸۲

# تنکۍ غوټۍ

ښایستې نجلۍ د سرو ګلونو ګېډۍ
ته لا وړه یې لویه سوې نه یې
ستا د ښکلا پردې لا څیرې نه دي
ته لا غوټۍ یې سپړېدلې نه یې

تا لا د سوې مینې سره اورونه
د چا کوګل کې لګولي نه دي
ستا د نازونو د انکار کرشمو
د خلکو هیلې زوکلولي نه دي

په رېږدېدلې په تبجنه ژبه
چا خپله طمع درښودلې نه ده

## ورکه مېنه

په لومړي ځل دې په تياره سينه کې
د مينې شمع لګېدلې نه ده

تا تر بانو لاندې په مړو کتلو
د چا خوبونه کوچولي نه دي
ستا د راتلو د انتظار ثانيې
چا ليونو غوندې شمېرلي نه دي

ته لا د شمعې ونرۍ وړانګو ته
کرار کرار د لوځېدلونه يې
ته لا په غېږ کې ډوبېدلای نه سې
د لوبېدلو د زبېښلو نه يې

ستا کرشمو لا ستا خوبجنې سترګې
د چا پر لوري اړولې نه دي

## ورکه مینه

په نیمو شپو کې دې بېده تبسم
د خلکو وینې سوځولې نه دي

ښایستې نجلۍ د سرو ګلونو ګېډۍ
ته لا وړه یې لویه سوې نه یې
ستا د ښکلا پردې لا څیرې نه دي
ته لا غوټۍ یې سپرېدلې نه یې

ته به هم لویه سې د طمع به سې
ستا د سینې غوټۍ به وسپړېږي
د وینو شپو د تیرولو به سې
ستا د ښکلا پردې به وڅیرېږي

پر نرۍ شونډو به دې مچې اوري
سترې خولګۍ به خو ځولای نه سې

## ورکه مېنه

مـــرمـــوز بخري بـــه دې زړه تـــه توی سي
روح بـــه له اوره خـــلاصـــولای نـــه سـي

د ســـوركـى شـونډو پـه اورونو بـه دې
د چـــا بـــه زړه كـي ويـــنـي وسـوځـيـږي
د شـرم لاس بـه كـړي له ستر گـو لـيـرې
وريـښـمـيـنـه غـبـږه بـه دې وغـورېـږي

د پـټ انـــگار د سـړيــدو پـه خـاطر
بـــه درنـــه هېر سـي د گناه يـادونـه
نـــازك زړگـــى بـــه دې تـوپـونه وهـي
دربـانـدې گـرځي بـه پـردي لاسونـه

تـه بـه هـم كـلـه د مـاشـومـو په څېر
په تودو اوښكو كې مسكـى سې چېـرته

## ورکه مینه

لـوښـــه بـــه لـوېـږي د هـوس مـخـی ته
لـه خـپله ځـــانه به پـردۍ سـي چـېـرتـه

تـــا بـــه هــم وسـوځـي د میني لــــمبي
ته بــه هـــــم یـادکـي بېګانـه نومونه
ته به هم ډېـري تــوري شپـي کـړي روڼي
او ســـتا پـــه یـــاد بـــه سي حرام خوبونه

ښـایـســتي نـجلـۍ د سرو ګـلـونو ګیډۍ
تــه لا ورو یـــي لویـــــه سـوي نه یـــي
ســــتا د ښـکـلا پـــردي لاڅـیـري نـــه دي
تــه لا غـــوټۍ یي سپړېــــدلي نــــه یي

پېښور

۱۹۸۳/۱/۱۹

# ورکه مینه

مـضـمـون د شـعر لـکه پـیــکر وي
دنګین الفاظ یې رخت او زېور وی
ورتــه ضـرور دي دا دواړه توکـــي
پیــکر که هر څو دلربـــاتر وي

تر دې تولو خبرو وروسته اوس راځم "ورکې مېنې" ته او د "ورکې مېنې " دشاعر شعرونو ته، زه داشاعر له پنځلسوشپاړسو کلونو راهیسې پېژنم او پیژندګلوي مې هم د ده د شعر په سر او دده دشعر په اثرورسره شوې ده، دده شعرزما خوښ ؤ،نوځکه مې دی هم خوښ ؤ،ده شعرونه لرویل خوپه دې لرو شعرونوکې به یې خوندونه ډېر وو،ځکه چې ده به هم له موضوع اومضمون سره انصاف کړی ؤ او هم له فن او هنر سره، د ده په شعر کې د مضمون او شکل بافت متناسب، سامعه نواز او روځنواز ؤ او له همدې کبله په کم سن کې د شعر لوړ مقام ته ورسېد او د هېواد د ګوتو په شمېر شاعرانو کې

# بېګانه

د نا اشنا ستر ګې ګونګۍ اوښکه یم
رغړم ځلېږمه ورکېږم څېرته
لکه د هېرو کیسو ورك نومونه
له زړونو وځمه هېرېږم څېرته

د یوه لیرې غره د تیږو تر منځ
یوه غوټۍ یم غوړېدلې یمه
نه د اوربل نه د ګرېوان په طمع
نه د چا سترګو پېژندلې یمه

زه د هستۍ د کهکشان پر لمن
نا پېژندلې نا لیدلې ستوری

## ورکه مېنه

د يوې لېرې نابلدې درې
پر يوه پاڼ باندې لوېدلی سيوری

زه د حيات د آسمانونو څاڅکی
ژوندی درياب ته رالوېدلی يمه
يوې څپې يوه لحظه اخيستی
وروسته له ځانه پردی سوی يمه

د پردي سيل سره الوتی مرغه
د بل په خوښه وزرونه وهم
د سوز ناري مې بيګانه دي دلته
ځکه پرخوله باندې مهرونه وهم

زه يو کيسه د لېوني پر ژبه
د چا غوږو ته رسېدلې يمه

# ورکه مېنه

چـــامـــې پـرلـوري راکـتــلي نــه دي
چـا لــه نــاکـــامــه اوریـدلــې یـمــه

د ناآشنا ستـرګـی ګـونګـی اوښکه یم
رغــړم، ځلیـږمــه ورکـیـږم چـیـرتـه
لکــه د هـېـرو کـیـسـو ورك نـــومـونـه
لـه زړونـــو وځـمــــه هـېـرېـږم چېـرتـه

پـنـمار

۱۹۸۳/۵

# مه پوښته نسیمه!

مه پوښته نسیمه،زما د غرونو څوکې مه پوښته
تیرې یې درد منې دي
مه ښوروه ونې، د ګل بوټو څخه لېرې سه!
څانګې یې خوږ منې دي
ته به دغوټیو سپرېدلو ته راغلی یې
ته دارغوان ومچولوته راغلی یې
ته دنسترن وبویولوته راغلی‌یې
ته به د شاعر زړه تخنولوته راغلی‌یې
نه، نه تېروتلی یې
ته، نه غولېدلی یې
داهغه چمن نه دی

# ورکه مېنه

داهغه وطن نه دی
داهغه گلشن نه دی
بڼ نه دی، خُتن نه دی
دلته لېونتوب توپاني سویدی
دلته کې وحشت لیونی‌سویدی
دلته اهریمن راپرېوتلی‌دی
دلته جنازې دي ،هدیرې دی،لحدونه دي
ساندې دي، مرگونه دي
هېرې دي له خلکو،که مستی‌دي که نارونه دي
اوښکې دي، غمونه دي
کړوبې کنډوالې دي،لېونتوب سوي ښارونه دي
ډزې دي، توپونه دي
بم دی، تنوزونه دي
اور دی، دو ړخونه دي
آخ دی فریادونه دي

## ورکه مبنه

چيغې دي، وحشت دی،ورکې ميندېاولادونه دي
وينې دي، اورونه دي
مه پوښته نسيمه،زمادغرونوڅوکې مه پوښته
تيږې يې دردمنې دي
مه ښوروه ونې، د ګل بوټو څخه لېرې سه!
څانګې يې خوږ منې دي

* * *

ورو ځه، په قراره ځه، د غرونو په لمنو کې
خوږ به دې ځنګونه سي
ستا د ارغوان ترلېمه وينې خوځېدلی دي
رنګ به دې لاسونه سي
ستا د ګل سرخ پر لمن وينې توکېدلي دي
ورك به دې مزلونه سي
مه ورځه نسيمه، د کېږدۍ پر لورې مه ورځه!
مرګ پکې کرلی دی

## وَرکه مېنه

مه غواړه شرنګی له امېلونو له پاولیونه
ژوند پکې سوځلی دی
نورې نه کېږدی‌سته،نه دنیمې شپې اورونه سته
نه سپینې سپوږمی‌ته چادنازکیسې رمزونه سته
نه ستا هر کلي ته شنه باغونه، چمنونه سته
نه د دنګو پېغلو پر نری غاړو لاړونه سته
هر څه سوځېدلي دي
هر څه زمولېدلي دي
هر څه نړېدلي دي
ډوبې دي د ژوند د حرکت بېړی
ورکې دي د ځوانو ارمانو لړی
ماتې دي د مینې د الفت کړی
هېره ده د عشق او پیوستون نړی
تاته نه کوربه سته نه سلام ته څوك درتللای سي
نه دې نسترن ته نه غاټول ته خندیدلا سي

## ورکه مېنه

نه خوږ مني پښې ستا پر لمنو نڅېدلای سي
نه دا ماتې لیچې په اتڼ کې غورځېدلای سي
مه پوښته نسیمه،زماد غرونو څوکې مه پوښته!
تیرې یې درد مني دي
مه ښوروه وني له ګل بوټوڅخه لېری سه !
څانګې یې خوږمنې دی

واشنګټن

۱۹۸٤/٤

# نذرانه

هر څه درپرېږدمه د جانان خبرې مه کوه
ما د اور خلیل ته د ایمان خبرې مه کوه

زه دمرګ په طمع د ژوندون په لارو ګرځمه
سر چې نذرانه سو د تاوان خبرې مه کوه

ما ته په تقدیر کې د خزان زېږې په برخه سو
نورې د بهار او د بوستان خبرې مه کوه

زما یې د ځوانۍ د ګلو پاڼې رژولې دي
هېر که د انامرده د باغوان خبرې مه کوه

## ورکه مېنه

ما د ښـو اوبـدونـه لاسونـه پـر سر کړيدي
ما ته د ملك او د شيطان خبرې مـــه کوه

تا چې د جنون په نـــامـه جـوړې زولنې کړلې
عقل لېونی ســو د زنــــدان خـبـرې مه کوه

ما يې د فردوس دکوثر جام په دو وهلی دی
ما تـــه د دنيادسو دو زيـــان خبرې مـه کوه

مـــا په ويښو ستركو ستا خوبونه دلته ولـدل
پرې مې ږده زاهــده د آسمان خبرې مه کوه

زه د لـېونتوب لپاره هسې پـــلمه غوارمـــه
ما ته د مجنون او د بيابـان خبـرې مـــه کوه

وشمېرل شو.

زه "جهاني" ښيم، عبدالباري جهاني، هغه شاعر چې ښکلو شعرونو به يې هم مشاعرې ښکلې کولې، او هم مجلې او جريدې. د ده پخواني شعرونه د مستۍ او غورځنګونو نه ډك وو او اوسني شعرونه يې د پردېسۍ له سويو ازانګو ځخه، خو يو څه چې د ده په شعر کې يې خپل ثبات او ټينګار ساتلی،هغه په هيڅ حال کې مايوسۍ او قنوطيت ته تن نه ورکول دي، نو ځکه د ده د شعر پخوانۍ مستي د قهرمانۍ په مستۍ بدله شوې او هغه وخت يې که په لاسونو دخاورينو جامونو ماتولو کيسې کولې اوس په سوکونو د پولادي ټانکونو ماتو لو کيسې کوي، هغه وخت يې که بغاوت د فکر او ذهن زنځيرونه ماتول اوس يې بغاوت د سره ښکېلاك د ملتونو د ښکېللو او ايللو له زنځيرونو سره په جنګ دی.

ما مخکې وويل چې جهاني زموږ د هېواد په معاصرو شاعرانو

## ورکه مېنه

زه لکــه حباب د اوږده ژوند سره آشنا نه یم
ما ته د سېلونــو او تــوپان خبرې مه کوه

واشنګتن

۱۹۸٤/٤

# ګیله من اشنا ته!

دا شعر د حبیب الله رفیع د "اورونو اوویرنو" د کتاب او د هغه د رالېږلې ګیلې په ځواب کې لیکل سویدي.

زړه تـــه راتـــېره ګیله منـــه آشـنا!
ستاله خوږو - خــوږو ګـیلـو وګـرځم
ستالـــه سـپـېڅلـو اسویلیو قـربـان
ستـالـــه ویـــرجـنـو تـــرانو وګـرځم

ستـا د "اورونو او ویــرونــو" بــهیـر
زه ســوځـــولی، ژړولـــی یمـــه

## ورکه مېنه

ستا د تودو ويرجنو چيغو آواز
له درانه خوبه پاڅولی يمه

ته باوري يې چې دا سرې وينې به
نن که سباوي چيرته رنګ راوړي
د آزادۍ د ناوې لاس به سره کا
د مستۍ بزم به په شرنګ راوړي

ما د هلمند سره د حال په ژبه
کيسې د فتحې د جشنونو کړې
مايې ليدلي دي ياغي خوبونه
ما سلسلې د تعبيرونو کړې

ته وايې مه غواړئ له مانه مستي
ژوندی جهان دی توپانو څپلی

## ورکه مینه

ستا څخه هېر دی د پایزیب شرنګهار
وحشي لښکرو دې کوږګی وهلی

ما لـه پخـوا دا خـزاني قـافلې
د خـپل ژونـدون پـر منزل واړولـې
هېر مـې کړل تـوله د ځوانی یـادونه
هیلې مې هم تولې نـابنادې سولـې

زه یـو نـاکامـه نابلـده سـفر
د پـردو غـبرې تـه راوړی یمـه
دلته پـوښتنه د دردونـو نسـته
زه بې دردیـو ګـونګی کړی یمه

زما د احساس په تال کې ورکې نغمې
د دې محـفل د اوربـدلـو نـه دي

## ورکه مبنه

زما د ګونګې ژبې خاموشي چیغې
دلته د چا د پوهېدلو نه دي

دلته یوې رېښتوني کرېکې سره
د تزویرونو جهان وخوځېږي
چابه لا سترګې رپولې نه وي
دلته زرګوني اوښکې وبهېږي

زه یو پردېس یو نا امیده شاعر
زما اسویلي د اورېدلو نه دي
زه د نصیب ښکاري ویشتلی مرغه
نور مې وزر د الوتلو نه دي

زما د خیالونو نړۍ ونړېده
نه "جهاني" نه یې جهان پاته دی

## ورکه مینه

زمـــا د آرزو پـــسرلـی ورژېــــدی
نه يې نسيم نه يې باغوان پاتــه دی

واشنگتن

۳ - ۱۹۸۵

# سُرابي هیله

يه زمـــا لـېونـی خـــوبـــه!
يــه زمــا غــرخــنـی مــينــې!
يــه زمــا كــوثـري خيــالــه!
يــه زمــا اورنـــــی ويـنـې!

يــه زمــا سُرابـي هيلـــــو!
يـه نـيـمگړو اميـدونـــــــو!
يــه پر وركـور بـــاطـــونـــو!
هـېـرو سويــو ارمــانــونــو!

يــه زمــا د خــوب لــه ذامــه!
خوځـېـدلـو هــوســونــو!

## ورکه مېنه

يـه زمـا د خــيال لــه غــيرېږ!
ورکــوســويــو جنــتــونــو!

يــه زمــا لــه مــاشـوم لاســــه!
الــوتلو مــــرغــكــــيــو!
يـه زمـا خــوښى پــايــمــالـې!
ســوځــېدلـــو بــد مــســتـيــو

يــه زمــا د فــكـــــر ســيــنده!
يــه زمـــا د نـــظـــــم اوره!
يــه د ژونـــد وركــــه ســاحلــه!
د هــوښــيــاري مستى كــوره!

يــــه زمـــا سېرابـــې تـنـدې!
يــه زمــا سُرابي جــامــــه!

## ورکه مینه

د بې هوښه عقل خیاله!
له اغازه تر انجامه!

یه زما فرهادي منډو!
یه زما مینې شیرینې!
د قسمت هیره سینه کې
خوشبیدلې تودې وینې

زما یاغي مستو خیالونو!
یو وار زړه ته راستانه سئ
زما خوږو ورکو خوبونو!
بیا پر سترګو مېلمانه سئ

یو وار بیامې ورلاهو کئ
د خیالي کوثر څپوته

## ورکه مېنه

زما د خضر سمندر ته
زما نامرادو اند پښنو ته

یو وار بیا مې په سینه کې
د ځوانۍ لمبه تازه کړئ
یوه مسته ایښمه غوارم
نور مې ژوند لمبه لمبه کړئ

یو وار بیا مې شیخ ته یوسئ
د ګناه زړګوني پانې
د سنګسار میدان ته راوړئ
د بې هوښه قسمت کانې

ماته مه وایه نصیبه!
چې رښتیا مې سول خوبونه

## ورکه مېنه

کې د ګوتو په شمېر شاعرانو له ډلې څخه دی، دا شاعرانه مبالغه مه ګڼئ، دا یو حقیقت دی. مور له ده نه په سن مشران شاعران لرو، خو تر ده ښه او تر ده خواږه شاعران نه دي.

د نور چا نومونه، نه اخلم، دا زه په خپله هم شاعر یم، هم تر ده مشر یم او هم مې د کمیت او شمېر په لحاظ تر ده زیات شعرونه ویلی دي، په دې باب چې له شاعرانه تعلی او تصلف نه تېر شم او د یوه واقعیت بین نقاد او د علم او فن د موازینو په اساس قضاوت وکړم نو په واز کومې وایم چې زما شعرونه سره له دې چې د پښتو ادب ذخیره او زېرمه ده او د کمیت په لحاظ د پښتو ادب په بهیر کې اضافه ګڼل کیږي، خو د کیفیت له مخې کوم نوی او فوق العاده زیاتون نه دی، لکه ماغوندې ډېر نور شاعران هم شته چې په پښتو کې شعرونه وایي خو د "جهاني" له شاعرۍ سره د یوه یوه کس شاعري سیالي کولای شي، نو ځکه باید په زغرده قضاوت

## ورکه مبنه

ماته مه راوړه نسیمه!
زمولیدلي سوغاتونه

ماته مه ښایه آسمانه!
ستا له قهره سوځېدلي
ستا یاغي سیلاب وهلي
ستا خوني توپان وژلي

زه رښتیا یم کړولی
زه خیالونه درنه غواړم
زه له ویښو سترګو ژاړم
زه خوبونه درنه غواړم

دا د عقل ځنځیر واخله!
لیونی آزادي راکړه!

# ورکه مېنه

که احســان د ژونــدانـــه دی
دا خیــرات دې نیمــه خــوا کــړه!

ویر جینا

۸ ۱۹۸۶

# هسکه پامیره!

هسکه پـــامیــره د غرونـو میره!
بیادې پرتـې دي واورې پــه ږیره
بیا دې لـمن ده د کیسـو ډکـــه
د چـا لـه فتـحـــې، د چا له ویـره

زمــــان دروړی لښکـــر د تـــکو
پـر ســر دې اوري سـره آفتونـه
د حــوادثـو ځولۍ در سیخ سـوه
د تـورو وربـــځو یاغي پوځونـــه

بیادې په غیرتکې پنجشیر یاغی دی
بیا درنه رپـي دخلـکو زوړونـــه

## ورکه مېنه

بيا دې ښکاره کړی پولادی موټې
بيا دې له زوره ډك سوه رګونــه

بيا دې شل کړي بيادې مات کړي
د چا لاسونــه د چا غـــاښـونـه
بيا لــه سکندره لارې دي ورکــې
بيا يې خوږمن دي ټول اندامونه

بيا دې چوغـې تـه ارم سول غشـي
بيا دې په ترو ګرځي ټــانکــونـه
بيا امتـــحان دی، بـيا ازمـويـنه
بيا د سل ګـونـو فتحو يادونـه

بيا دې پر څوکو واورې لمبه سوې
بيادې ګريوان ته توی‌سول اورونه

## ورکه مېنه

بیا دې لمن کې د مرګ نارې دي
بیادې د روکې ورك سول پوځونه

هسکه پامیره د غرونو میره!
بیا دې پرتې دي واورې پر ږیره
بیا دې لمن ده له کیسو ډکه
د چا له فتحې د چا له ویره

لا درکې شته دی زړې سکروټې
لا درکې خوځي پلرنی وینه
درته یادېږي تېرې خبرې
لا درکې اوسي پرونی وینه

لا درکې ګرځي زاړه پلرونه
لا درکې زېږي نوي میړونه

## ورکه مېنه

لا دریادېږی د زمـــرو مېنـې
د بـري چيـغـې، زاړه نکلـونـه

لا دې هستېږي پـه لوړو څوکـو
د عـقابانــو کـلـي کـورونـــه
دربانـدې ګرځي تېرې مښـوکې
ښکاري منګولې، ياغي وزرونـه

لا دې خروښېږي پر سختو کاڼو
د قهرېدلو اوبـو مـــوجـونـه
لا دې غړومبېږي پـه ګـړنګو کـې
خړی باډاسکی، وحشـي سېلـونـه

لا دې لـړزېږي لـه قـهـره موټي
لا دې سينه کې زلـزلـــې پـاڅي

## ورکه مېنه

لا دې مستېږي جنګ ته رګونه
لا دې پر ګارو سېلونه ناځي

هسکه پامیره د غرونو میره!
بیا دې پرتې دي واورې پر ږیره
بیا دې لمن ده د کیسو ډکه
د چا له فتحې د چا له ویره

څوچې نړۍ وي ژوندی به پایي
څوك چې اوسېږي ستا پر لمنو
کیسې به نه سي د زمان هېرې
ستا د پلرونو ستا د زامنو

څوچې جهان وي هسکې به اوسي
ستا د لمنې پولادي پرښې

## ورکه مېنه

ورکې به نه سي په افسانو کې
ستا په دروکې د وینو کرښې

څوچې آسمان وي، څوچې زمان وي
ستا خرخښې به پکښې یادېږي
چې تاورکړي د غضب غشي
نه به مړه کېږي، نه به رغېږي

څوچې دامځکه، څوچې انسان وي
ستا به داستان وي او ستا خبرې
هېر به یې نه سي کاري وارونه
که اسکندر وي که سرې لښکرې

هی درواری سم د ګوربت کوره!
ستا له درو، نه - ستا له شپلونه

## ورکه مبنه

ستا لـه عظمته، ستا له قدرتـــه
له لـوړو څوکـو له ګرنګو، نـــه

هسکه پامیره، د غــرونـو مـیره!
بیا دې پرتې دي واورې پر ږیــره
بیا دې لمـن ده لــه کیسو ډکـه
د چـا لـه فتحې، د چا لــه ویـره

ویر جینا
۱۹۸۵/۳

# جنون

پرېږدئ چې دا تورې توپاني وربځې
بیا د شنه آسمان کناری ونیسي
پرېږدئ د وحشت دا لېونۍ څپې
و څرخي راتاو سي ګردابونه سي
ډوبې کړي د ژوند بېړۍ
غرق سي د هستۍ مفهوم
سره سي د اُفق لمن
توی سي د غروب اوښکې

پرېږدئ ګناهونه رانه وتښتي!
پرېږدئ جهنم راباندې ستړی سي!
پرېږدئ چنګېزي منګولې سرې سي بیا!
پرېږدئ انساني چیغې خاموشې سي!

## ورکه مېنه

وکړم چې: "د جهاني شعر په پښتو ادب کې د شکل او محتوی، او د کيفيت او کميت له اړخه يو ښه او په زړه پورې زياتون دی"خو له دې سره ـ سره ده تر اوسه کتاب نه درلود او شعرونه يې په کتابي بڼه نه وو خپاره شوي.

زما سره تل دا هيله وه چې د ده د شعرونو مجموعه د چاپ غېږې ته ولوېږي او د هر چا لاس ته ورسېږي. ها تېرې ورځې ښاغلي "غروال" او بيا ده راته وويل چې زه خپل د شعر کتاب چاپوم، ته څه پرې وليکه! زه دومره خوښ شوم چې له ټول مصروفيت او سرگردانی سره ـ سره مې بې اختياره "ښه" ورته وويل او دا دی په دې څو کرښومې خپله غاړه خلاصه کړه، خو د ده د شعر حق مې ادا نکړای شو.

زه گران جهاني ته د دې کتاب د خپرېدلو مبارکي ورکوم او زموږ د سپېڅلي جهاد او ادب مينان يې لوستلو ته رابولم او د لوی خدای له دربار نه عاجزانه هيله کوم چې ډېر ژر دا"ورکه مېنه" په گډه ومومو او د آزادی پر ځای يې د آبادی له پاره دی، زه او د

## ورکه مېنه

ړنګې سي د ژوند نغمې
وخوځي د مرګ څپې
مستې سي، موجونه سي
جوړ ترې سیلابونه سي
پورته توپانونه سي
ویښ سي شیطاني ارواح
وګرځي راوګرځي
وسو ځي وزر د فرودسي قاصد

پرېږدئ چې د توپ تر اورنۍ سینې
سرې لمبې راوالوزي
وغړمبېږي وخوځي
کور د ښتن وسوځي
پورته سي د مرګ چیغې
څیرې سي نازک زړونه

## ورکه مینه

ورانه سي پر شونډو زمزمه د ژوند
چوپې سي نیمګړې سي نغمې پسې
پرېږدئ چې د ټانګ تر آهنینو پښو!
لاندې سي نازکې د ځوانۍ هیلې
پرېږدئ داټوم د خر مستۍ بچې!
ورانه کې، تالاکي د ورورۍ ټړۍ
ړنګه سي د ژوند د تمدن لاره
هېره سي د عشق او پیوستون کړۍ
عقل د جنون و کورته ننوځي
پوه سي د آدم دا آدم سوز بچی
څشي یې وژلي دی؟
څشي یې سوځلی دی؟
ولې یې وران کړیدی؟
ولې یې د ژوند ترانې چوپې کړې؟
ولې یې د عشق نغمې خاموشې کړې؟

## ورکه مېنه

ولې يې د مينې د جنت تر څنګ ؟
اور د دښمنۍ او عداوت بل کی؟

کابل

۱۹۸۰/۲۰؛

# انجام

زه په هر نن کې د پرون د مرګي نخښه وينم
ماته خبرې د سبا او سباوون مه کوه

زه له آزادو الوتلو بې نصيبه سولم
ما وزر ماتي ته خبرې د ژوندون مه کوه

زما درغجنو اسوېليوته چې ونه ژاړې
باور زما په فريادونو شواخون مه کوه

ما د صياد له وېرې پرېښودل خپاره سيلونه
ماته خبرې د ملګرو د بېلتون مه کوه

## ورکه مېنه

د زړه په خوښه د قسمت ودام ته ولوېدمه
لاپې د مکر د حيلې د افسون مه کوه

تازه د عقل د زندانه راوتلی يمه
راته کيسې د هوښيارۍ د افلاطون مه کوه

ما چې له زړه څخه آرزو د سبا وشړله
راته خوارېه ـ خوارېه نکلونه د پرون مه کوه

ما په آغاز کې د انجام زنې ليدل ژړېدم
ما ته فرياد د زمانې د اوښتون مه کوه

چې د ازل ساقي پياله درته نسکوره کړله
بېځايه طمع له کچکوله د ګردون مه کوه

واشنګتن - ١٩٨٧/٦

# خوب وینم عالمـــــه!

خــوب ویــنـم عالمــه کــه یې څــوك راکي مانه
ویــنـم خــپلــه مــېـنـه زمانــه پــه زمــانـــه

خوب وینم "خوشـال" دی لـړزوي په کټ کی زړونه
تــورې دي، لښــکـرې دي، آسونــه دي پــوځــونه
رغـــړي پـــه مـيـدان کـــې د مغلو پرې ســـرونه
مـــا تـــه لـــه اورنګـــه ده د کبـــر پیـمانــــــه
خوب وینم عــالمــه کـــه یــې څوك راکي مــانــه

خـــــوب وینم پر قبر د "مــیرویس" جنډې نخښېږي
بیــا لــه کـنـدهــاره هنـګـامې راولاړېـــــــږي
بـــیـــا د ګرګـینیـانو د مقـتل خبـرې کیـــږي

## ورکه مېنه

بیا راپارېدلي د زمریو خېلخانه
خوب وینم عالمه که یې ځوك راکي مانه

خوب وینم عالمه چې نرېږي دېوالونه
چیغې دی، جشنونه دي، نارې دی تکبیرونه
لوېږي هم له پښو هم له لاسونو ځنځیرونه
رنګه ده د غرونو د بازانو جیلخانه
خوب وینم عالمه که یې ځوك راکي مانه

خوب وینم قاضي دی عدالت دی او حکمونه دي
وینم هتکړۍ دې او خیرن ـ خیرن لاسونه دي
ږغ د ځنځیرونو د زاریو اوازونه دی
لوېږي د پردو د مزدور پښو ته زولانه
خوب وینم عالمه که یې ځوك راکي مانه

## ورکه مېنه

خــوب وینم رغیــږي د کــلــو۔کلــو زخمــونه
ډك دي لـــه مـــړونـو واړه کـلـي لـوی ښارونه
بـیا په پښتنو پېغلو ښایسـته دی ګـودرونـــه
بیا رنځور احســاس غــــواړي مستی ته بهانه
خـــوب ویـنـــم عــالمه کـــه یې څـوك راکي مانـه

خـــوب ویـنم وطـن دی، ګل سرخ دی اوجشنونه دي
مستو سخـــي وریــځو او رولـــي سره ګلـونه دي
پـــورتـــه لـــه ګل څانګــو د مـرغیو اوازونـه دي
هـــېــره پـــه وصـــال کـــې د بیلتون ده افسانــه
خوب وینم عـالمه کـه یـې څــوك راکـــي مانــه

خــوب ویـنـم د لــوړو غــرو په سر واوري ویلېږي
خـــوځـــنـــد ه سـېلونه په سـینـدونـو کـې مستېږي
ســر وهي لـــه ګــارو هـم نـخــېږي هم خښمېږي

## ورکه مینه

ناخـــي يې څپـــې د جـــالـه وان پـر تــرانـه
خوب وینم عالمه کـه یې ځوك راکــي مانه

خـــوب وینم غروب مــرغلین کـــړي دي دښتونـه
ځل وهي شــــغلو کـــې د ســپــیدار لانده برګونه
بـــرېښي د کــوتـــرو د سپلــونــو وزرونــــــه
څـــرخــي ډلـــې کـاشـــانـه پـــر کاشـانــه
خوب وینم عـــالمه کــه یـــې څـوك راکي مانه

خوب وینم "غـنـي" وي پـه ورو- ورو راتـه مسـېـږي
لاس کې یې "پانوس" دی "پلوشې" ترې پورته کېږي(۱)
ځي هغې نــږه ته چې خمار پکـــې مستېـږي
ګــرځـــي پـــه مستانو میخانــه پــه میخـانــه
خــوب وینم عالمه کــه یـــې څوك راکي مانـه

## ورکه مینه

ما يې تعبير کړيدی دا خوب مې رشتيا کېږي
نور د اولسونو د ښامار ستوني څيرېږي
زموږ ورکی مينه، زموږ جونګړه آزادېږي
ګرځو بې په غرونو کې سر شار او مستانه
خوب وينم عالمه که يې څوك راکي مانه

وير جينا

۱۹۸٦/۸

---

(۱) "پانوس" او "د غنی پلوشې" د پښتو ژبې د مشهور شاعر غنی خان دوه شعري مجموعې دي.

## ورکه مېنه

هېواد ټول دردېدلي شاعران په مينه ـ مينه ترانې ووايو او د خپلې دې سپېڅلې مور د خدمت لپاره ګامونه اوچت کړو، فکرونه سترې کړو، لاسونه تناکې کړو او د هجران ترخې شپې مو په خواږه وصال بدلې کړو.

په همدې هيله

د خدای په امـــان
حبيب الله رفيع
پېښور ـ آبدره روډ
۱۳٦۷/۱۰/۱۹هـ ش
۱۹۸۹/۱/۹م

# تهمت

یوه ورځ سوی وارخطا په تاخت روان ؤ
پتېدئ د لارویو له رغونو

تولـه ژوی یې ترسترګو غلیمان ؤ
وېرېدئ له کانو بوټو له ښاخونو

کله دلته کله هلته غلئ غلئ
پښې چاودې پر زړه پېټې د غمونو

دوه غوږونه یې پر سر تیارسئ کړي
سترې زړه سره لګیاؤ په برېتونو

یو نا څاپه یو آشنا ورباندې رغ کړه
سوی له کومه سترې راغلې په تېږونو

## ورکه مینه

او دا سترګې دې پرخه لــه وهمــــه ډکــې
چــا درکښې ایسـتلـه وېـره پــه رګونــــو

کـــوم لېوه دربـانـدې کـړې څــه حمله ده
کــه دې ډزې د ښکارې دې تــر غـــورېـونو

سوی‌له وهمه رېږدېدی‌خوله یی‌کړه خلاصه
سوه نـــازلـه یـــې لــړزه پــر انـدامـونـو

ویلـــې پیـل دی چـاوژلی په ځنګله کـــې
تــول وجـود یـې دی زخمـــي له ګوزارونو

نـــه چـې مـا باندې ګومان د قاتل وســي
زه بېرېږم لـــه تهمته لـــه تـــورونـــو

## ورکه مېنه

داخوارځواکی ځان مې د ېررابانديګران دی
په تلـوار ځـمــه تــر کــور تــر اولادونــو

واشنګټن

۱۹۸۷/٤

# بوډۍ مینه

ساقي سینه کې بلې پټې لمبې دي
خم ته راغلی یمه واخله پیالې دي

سینه کې وښورېدل بیده خیالونه
د بوډۍ مینې مستې زاړه یادونه
سترګوکې ونڅېدل تېر حسابونه

یوسه د عقل زنځیر او زولنې دي
خم ته راغلی یمه واخله پیالې دي

لا مې په وینو کې سته زاړه اورونه
لا لېونتوب ته خو ځي ژوندي رګونه
لا مې بخرې ژاړي خپاره نظمونه

# ورکه مېنه

لا مې په زړه کې ژوندۍ څو ترانې دي
خم ته راغلی یمه واخله پیالی دي

نن د کلونو تږې دلته اوبېږي
د زخمي هیلو پرهار پکښې رغېږي
څپې د وصل راځي هجر ډوبېږي

نن د زاهد پر خونه د غم نارې دي
خم ته راغلی یمه واخله پیالې دی

نن د حافظ په حکم توبه ماتیږي
د ګناهونو کاتب ستومانه کېږي
د عقل فکر زندان رانسکورېږي

## ورکه مېنه

زما لېونتوب پخوا جوړې پلمې دي
خم ته راغلی یمه واخله پیالې دي

نور نصیحت ونکړې شېخه نادانه
په نا پایانه شراب کې سر گردانه
ځکه مې کوچ راکړی ستا له جهانه

زما د بقاء په کوثر کې اجارې دي
خم ته راغلی یمه واخله پیالې دي

تا دابلیس له وېرې شپې کړلې سپینې
ماپه مستۍ وچې کړې شیطاني وینې
تادتوبو په اوښکو سترگې کړې خوږینې

## ورکه مینه

زما د توکل په میو ماتې توبې دي
خم ته راغلی یمه واخله پیالې دي

زه او ساقي د ازل ګناهکاران یو
موږ د قسمت په تقسیم سره خپلوان یو
ته د نصیب جنتي موږ دوږخیان یو

ما "جهاني" منلې دا فیصلې دي
خم ته راغلی یمه واخله پیالې دي

ویر جینیا

۱/ ۱۹۸۸

# ګاونډي ته

ګوره اشنا زما ګاونډيه اشنا!
زماخواره بوښکي کورګي اور اخيستی
هغه پخوا چې دې بخري بلل
پرون لمبې سوې نن يې زور اخيستی

زما د بابا مېنه يې ورانه کړله
زما يې مکوټ کړل د هستۍ نومونه
زما پر دښتو باندې واورې سوځي
راته يې اور کړل د اميد باغونه

زما له نيستمنو کنډوالونه خېژي
مظلومې چيغې د حسرت دودونه

# ورکه مېنه

وربانـدې اوري لـه آسـمانه تکـی
وربانـدې ګـرځـي لـېونی ټانکونـه

زمـا پـر وطـن بـانـدې آفت راغلی
یـوه بـلا ده هـېـوادونـه لـوټـي
ملکـونـه وژنـي د خـپلوی په نامه
پـه نـوم د سـولـې جهانـونـه لوټي

ګـوره آشنا زمـا ګـاونـډیـه آشـنا
زماخواره بوښکی کورګی اور اخیستی
هغـه پـخوا چـې دې بـخـري بلـل
پـرون لـمبې سوې نن یې زور اخیستی

مـا هـم د خپـلو ګـاونـډیو پر کـور
د سـرو پـوځـونـو چپـاو ونـه لیدل

## ورکه مېنه

ما هم له ډاره څه ویلای نه سو
ما هم د سترګو تر کونجونو کتل

ما هم لیدل چي د اسلام پر پولو
د بې مذهبو سیلابونه راځي
د خپلواکۍ د جنګیالیو کورته
د زورورو تاړاکونه راځي

ما هم لیدل چي محرابونه سوځي
د بریتور ستالین وحشي پوځونه
ما هم لیدل چي د برچو په څوکو
پورته کېدله بې ګناه سرونه

هغه پرون چي مي پردي بلله
هغه اورونه مي انګړ سوځوي

# ورکه مېنه

د ژوندون وحشي موجونو
له آشنا مېنې بېل کړی
د زمان ياغي بادونو
بل جهان ته يم راوړي

رايادېږي مې جونګړه
رايادېږي يې خيالونه
هسې لېږې راته ښکاري
لکه ورک ستړي خوبونه

نه د چا پر بېدو شوندو
څه مرموزه نغمه ناځي

# وركه مېنه

هر شاعر لره ځانته يو جهان دی، چې يوازې دی يې جهانبان دی. شعر راز دی. په راز باندې خبرې کول په زړه باندې تجاوز او په روح باندې تېرى دى. زه په شعر باندې تقريظ او انتقاد ګناه ګنم .
عبدالبارې جهانی يو استعداد دی چې که چېرې زمونږ د اسير محيط د قيد او بند څخه آزاد پاتې شي خپل رازونه به د سپېڅلو پيامونو د شعارونو په څېر جهانيانوته ورسوي، چې د نننې بازارې شعارونو بازار مات کړي. زه ورته دعا کوم چې خدای (ج) او خندا دې ورسره مل وي.

عبدالرحمن پژواك
نوى ډهلي
مارچ ـ ۱۹۸۰

## ورکه مېنه

چې مې د بل د کور غل ونه باله
هغه ډاکو مې نن هستي لوټوي

ګوره آشنا زما ګاونډیه آشنا
ستا تر لمن لاندې لمبې وینمه
دې اژدها لازه خوړلی نه یم
چې بیایې تاته سترګی سرې وینمه

دغه زلخوړی وږی تږی ښامار
په مړیدلو باندې نه پوهېږي
چې څومره خوري خروړی کېږي پسې
فقط پړسېږي، مګر نه مړېږي

دغه لمبې څه پولې نه پېژني
ستا تر ګرېوانه به هم ورسېږي

## ورکه مېنه

نـــن يـــې لازنې ستا په کور کې وينم
تاتــــه بــه هــم ســکــروټـــې و ټوکېږي

ګـــوره آشنا زمـــا ګاونډيه آشـــنا
زما خواره بوبنکی کورکي اوراخيستی
هغــه پــخــوا چــې دې بــڅري بلـــــل
پــرون لـمبې سوې نن يې زور اخيستی

ويرجينيا

۱۹۸۵/۶

# دعوه

کندهار مې د بابا په قواله دی
که پنجشېر دی‌که واخان دی‌وطن زما دی

هره لوېشت مې د نیکه اوباباګور دی
پرهرګام باندې لحد او کفن زما دی

هرغباتول یې زماله وینو رنګ اخیستی
داپه وینو روزل سوی چمن زما دی

له نیکه راپاته سوی په میراث دی
داد مشکو رباتونه ختن زما دی

سرداري یې زماپه پچه ده ختلې
له آموتر مست هلمنده ماء من زما دی

## ورکه مینه

که تاجك دی که اوزبك دی یوافغان دی
ددې خاورې هزاره ترکمن ز ما دی

چې فکرونه د نفاق پالي په سرکې
امتیازیې دوهلو کشتن زمادی

ښه یې زمادی،بدیې زمادی‌هرڅه زمادی
د دې خاورې ارغوان اوزغن زما دی

د لته هره تیره، کانی بدخشان دی
دا لعلونه، غرونه دمن زمادی

دازل تقسیم باغوان یم پیداکړی
دا بهار دا لاله زار او ګلشن زما دی

دامورچل مورچل پکتیا او داشیرېرېتي
چې فلك به کوږ ورګوري دښمن زمادی

## ورکه مېنه

که"مېرويس"دی که اکبرکه مسجدي دی
هره توره، هــر ميدان او تورزن زما دی

فتح زماده،فخرزما دی، جشن زمـا دی
شهيد زما دی د ويرژلـو شيون زمــادی

چې په زړه کې څه درتېرنه سي آسمانه!
چــې پرون مې د نيکونو وو، نن زمادی

ويرجينيا

۵ـ ۱۹۸۸

# دروغجنه مینه

درته یادېږي هغه سره ګلونه
چې دې اوبوکې ایښودل په مینه
تر سترګو لاندې دی کتله راته
تا ویل دا به زموږ د مینې او ګرانښت شاهدوی
یوه ګړی وروسته مې
غېږ ته راولوېدې
خوره وره سوې
اومچولم دی، کښې کښلم دی
ز بیښلم دی هم
شپه ترسهاره یو د بل په غېږ کې اوښتلو
راته یادېږي دی زګېر وي
او خوبولی سترګې

## ورکه مېنه

شپه وه سهار سوله رخصت مې سوی
له سترې غبرګې
ته پوهېدې چې بيابه ونه وينو
زه پوهېدم چې راستنه به نه سې
راته دې پرېښودل ځومړاوي اوخزان ګلونه
هسې بې روحه او خزانې پاڼې
لکه احساس د دروغجنې مينې
لکه پلمې د هېرو سوو وعدو

کوټه

۱ /۱/ ۱۹۸۸

# رسوا رازونه

هېرې به مې نه سي چې دې غتمې سترګې پورته کړلې
پاس دې آسمان ته کتل
اور اروانې دې سوی اوښکې پرمخ
ورپسې نوری راغلې
د مرغلرو دکاروان په رسم
وخوځېدې
او د ګرېوان آشنا مزل يې واهـه
ما په حيرت ـ حيرت کتله ورته
هغه ګړۍ هر څه رسوا سوه هر څه وسپړېده
د نمکۍ خندا افسون څه پټولای نه سو
هر څه دې وويله،
په هر څه وپوهېدم

## ورکه مېنه

خو زه بې وسه وزر وچه مرغه
زه د تقدير قفس تړلی ومه
زه ستا پر لور د الوتلو نه وم
ځکه مې اوښکې پاکولای نه سوای
ځکه مې تشه ننداره کوله

کوټه

۱۹۸۸ ۲/۱۱

# آرزو

کشکی چې نه وای زما او ستا ترمنځ
دا لوی ـ لوی غرونه
کشکې چې نه مو وای سیندونه اوښارونه ترمنځ
یا مې وزر درلودای
او یا مې روح در استولی وای د خیال پر اوږو
یوې خبرې لره
یوه پیغام دپاره
درسره مینه لرم هېر مې نه کې
دلته مې زړه ستا د خیالونو سره
هلته مې روح ستا د خوبونو سره
ملګری کړی وای
خوته په خپله

## ورکه مینه

نه د چا له پتهو سترګو
د هوس ترانې پاڅي

نه د چا پر سپینو لیچو
توري ځوڼې را خورې دي
نه د مړو کتو یادونو
سپینې کړې د چا شپې دي

نه د چا پردنګه غاړه،
لونګین په ورو - وروزانګې
نه مستۍ د مستو پیغلو
ماتې کړي دي ګلځانګې

نه هغه د سوما بوټي
نه هغه د غرو لمنې

# ورکه مېنه

د بې پروا ښکلې ماشومې په څېر
له هرڅه ـ هرڅه بې خبره غونډې
زما د آرزو پر چمن ګرځېدلای
لاندې کولای دې نازکې غوټۍ
اوهیر ولای دې زخمي ګلونه

کوټه

۱۹۸۸/۱۱/۱۰

# زرغونه کالي

رنګ که کالی مې د شنو پاڼو په شان
یو وارې بیایې رنګ که
جنګیالي نه اغوندي سپینې جامې
ګرانې و جنګ ته وځم
یو وارې بیا ورځمه
څو دبادونو،بارانونوپه لښکرکې ډوب سم
زه به توپك پر اوږه
په بریالیو زرغونو جاموکې
د سرو ګولیو او بمونو له بارانه څخه
له تاوده جنګه څخه
دېرته را ګرځمه او هېرې به کم
زما د زادګاه په زرغونو جاموکې

# ورکه مینه

د آزموینې سختې ـ سختې ورځې
د کړاوونو ډکې ـ ډکې لحظې
هغه کالي چې زرغونه دې رنګ کړه
دا به د مینې په ښایسته بهار کې
د تل د پاره زرغونه پاتې سي
او تودوي به مې په مینه ـ مینه

کابل

جون ـ ۱۹۸۰

# د پښتانه مینه

چېرې چې کور د پښتانه وي هلته
یا هسکې څوکې وي یا وچ دښتونه
نه یې جلګې وي په ګلونو پټې
نه یې په خوا کې وي روان سیندونه

ورته په قار د لومړۍ ورځې تقدیر
ورته په تریو تندي کتلي آسمان
ورله بخښلی دي ترینګلی قسمت
سترې مزلونه د شېلو او بیابان

د غرو لمنو کې شکېدلي کېږدۍ
ورکې اوسېږي د کلو رنځونه

## ورکه مینه

یوې نرۍ ویالۍ له ښنګه سره
چا آباد کړي وي ختمین کورونه

د لمر له تاوه لکه توره تبۍ
د ښایستو پېغلانو سپین مخونه
ابۍ تر شاوي یو ماشوم ترلی
وهي د ژوند سره مله مزلونه

لا مرور آسمان رلۍ اوروي
لا د نصیب سترګې کړې دي نورې
لا د ازل کوګل تش سوی نه دی
لا یې په برخه سختې شپې دي نورې

لا یو د بل د مرګ په طمع ګرځي
لا وارنوي دا با ورانه خونه
لا یې یادېږی د تربرونو کیسې
زړوکې یې بل د انتقام اورونه

## ورکه مېنه

لا يې سپين ږيري د بدۍ په زهر
وژني احساس د وروركلوۍ د مينې
پلرونه مينديې د كسات په لمبو
ورتودوي د اولادونو وينې

كله به يوسي دا مور مړۍ اولس
كله به وركه سي زوۍ مړې بدي
كله به "بيټ نيكه" خپره كي لمن
كله به جوړ كو پكښې كور ابدي

كله به وېېژني يو له بله
كله به مات كړي دا پردي خطونه
كله به جوړ سي د زمريو كلى
كله به تښتي سور لنډي پوځونه

كله به خويندۍ سي دښمني خوني
كله به ورونه سي غليم كورونه

## ورکه مېنه

هــېرې کــئ تېرې د بــــدل خبــــرې
سره را واخـــلي د وروری نـکلـونـه

۱۹/ ۱۱/ ۱۹۸۸

یادونه:
دا شعر له کوټې ځخه د پېښور پر لار په طیاره کې ویل سویدی.

# دا کونړ دی

دا نړېدلی وطن، دا سوځېدلی خوني
دا له مړونو خالي، دا حجری خوړمني

دا په ګولیو زخمي، دا په بمونو الوی
داشني جلګې پرونی نن په اورونو ستی

دغه بې کوره ژوندي، دغه بې ګوره مړي
دا لیلام شوې هستی هر څه لوټمارو وړي

دا تالا سوې کوځې دا چپاو سوې دېرې
دا د غضب ورونه، دا لوټېدلې میرې

دا د کونړ کلي دي، د پښتنو ښارونه
دا د مهمندو کلا دا د ساپیو خونه

## ورکه مینه

درسپیلنی دې سمه،زما بې ښبنتنه خلکو
زما دړې وړې مینې، زما بې وطنه خلکو

ستا له یتیم صدقه، ستا له شهیده قربان
لکه چې نه ختمېږي، ستا دغمونو داستان

یود"کرالي" قصاب بل د"ترنګ" داړه مار
درته لمبه سوه ځمکه،درته آسمان سوبه قار

زما ملنګو خلکو دا د کوم جرم سزا
زما معصوم اولسه! ووایه څه دی ګناه؟

لکه چې نه سرېږي درباندې زړه د آسمان
چې در ښکارلی یې دی د مردکیو باران

کوم غم دې وژرامه، کوم تپ دی وګنډمه
د کوم شهید جنازه درسره ونیسمه

## ورکه مېنه

لا بـه تر څـو دراوري دا د اورنـو ځولۍ
لا بـه تر کلـه درځي د جلادانـو ټولۍ

لا بـه تر څو لوټوي ستا د لالـونـو لړۍ
دا د نـامـردو ډلـې دا د رهـزنـو غدۍ

کـونړه! تېرې به سي د کړاوونـو ورځـې
د جنـازو خـبـرې دا د غـمـونو ورځـې

بیابه دې وخوځېږي په سیندکیمست موجونه
بیا بـه دې وغورېږي د شنو درو سېلونه

بیابه حجروته درځي چنګ اونري بربتونه
بیابه له لېرې راځي د ټنګ تکور رغونه

درکې به ډېرې وسي کیسې دعشق اومینې
خو پـاکبـدلای نه سي ستا د لمنـې وینې

## ورکه مینه

نــــه اوښــبه ،نه یــې هـــی هـــی دی
نـــه کــیږدۍ دي چــیرته پلـــنــې

نه هــغـه وحـــشـــي دښـــتو نـــه
نـه خـــاتـــول پکــې غـــوږیـږي
نه شـــیلي نـه یې باډاســـکـــي
نـه څـیې پکـــې مــــســتــیږي

نـه "خـــوشال" له زوره ږغ کـــړه
په ښـکاره چـــې خـوله یې راکړه
نه لـــه بـــخـتــه فـــریـادی دی
چي مـــلـــګرو ورتـه شـــا کـــړه

نـــه "حــمید" په شـنه زړګي کــې
خیـــال د شـونډو دی ساتلــــی

## ورکه مېنه

څـه چې پـر تـا راغلي د هېرېـدلو نـــه دي
کونړه! ستا قاتلان زمـورږ د بخښلو نـه دي

پېښور

۱۹۸۸ /۱۲/۱۷

# مات بتان

ښه سو چې غټ بتان راوپرځېدل
ښه سو چې رنګې سولې دنګې مانۍ
ښه سو چې وګرېدې ګونګې ژبې
له لاسو ولوېدلې توري کړۍ

د سمندر څنډې ته ووتلې
د زمانې سیلاب اخیستی بېړۍ
سترګو کې وځلېدې وړانګې د ژوند
هېرې سوې تېرې توپانې شوګیرې

ښه سو چې ورژېدې لويې داړې
ښه سو چې وسپړېدل پټ رازونه





## ورکه مېنه

نور به تیاره کې د لېوه انګولا
نه کړي حرام د چا آرام خوبونه

نور به دشپې د ماشومانو سره
نه وي د وهم او بلا نومونه
نور به د چا څپېړې نه شنه کوي
د چا د ګران یا د ابا مخونه

پېښنور

۱۹۸۸/۱۲/۱۸



## ورکه مېنه

نـــه فــراق د نـــو خـــطـــانـــو
کـــرۍ شـــپـــه دې ژړولـــــې

نـــه مـحـفـل سـتـه د رنـدانـــو
نه قــیامت د پایکـــوبـــونـــو
نه د شــــــېخ په لاس عــصـا ده
نه فــریاد لـــه سرکـــوبـــونـــو

نــه څـــه زېـــرې د فـــــردوس دي
نـه هــــــوس د کـــــوثـرونـــو
نه څــنـه وېـــره د ګـــنـــاه ســتـــه
نـه وحـشـت لـه دوږخـــونـــو

نــه جــنــون پر خــروښ راغـلـې
نه هــــوښیاره بد مســتي ســـتـه

# ورکه مېنه

نه د عـــقل لـــېونتـــوب دی
نــه د بنـــګـو هـــوښـياري ستــه

دلـــتـــه اور د ژونـــــدون نـــستـه
د ســـاړه جـــــهنم کـــور دی
دلـــتـــه هـــر څـــه ایـرې کـېږي
د حـــیات پــه نامـــه ګـــور دی

دلــــــتــه هـــر څــه ســودا کــېږي
دلـــــتــه هـــر څـــه بـــازاري دي
دلـــــتـــه ویـــنـې بـېـګانــه دي
دلتــه مـیـنـې ظـــاهــــــري دي

زمـــــا د جـــګـــو غـرو ســنـــدرې
څـــوك یـې نســي اوریـــــدلای

## ورکه مېنه

زما زیړه پښتنه ژبه
دلته نه سي ګړېدلای

زه داستان د بربادیو
زما کیسې په وینو سرې دي
نه له ستوني مې رغ وځي
نه په سورکې زمزمې دي

دلته وژنم خپلې هیلې
بې لمبې سوځم ویلېږم
نه د چا د لارې مل یم
نه د چا مخ ته بلېږم

زما هغه جنت پردی سو
چې مې حورې ورستا یلې

# ورکه مېنه

زما هغه کورګی تباه سو
چې کیسې به مې کولې

ها نسیم لمبه ـ لمبه سو
چې یې وینې وینښولې
هغه جام له زهرو ډک سو
چې مستی یې پاخولې

زما وروستي بخري مړه سول
زما، نه مه غواړه اورونه
زما ګونګی احساس مړ سوی
زما نه مه غواړئ شعرونه

ویرجینیا

۱ ـ ۱۹۸۵

# پردېس پسرلی

لېږي لېږي له هېواده
د پردیو په وطن کې
د اغزیو په کاله کې
زما د هیلو په مدفن کې

له ښایسته پغمانه لېږي
په ساړه شانې سقر کې
راګوښه له کندهاره
په بې مهره پېښور کې

د سخې طبیعت غېږ کې
د شنېلیو په لمن کې

## ورکه مینه

د تنکي نیالګیو خوا کې
یوه شنه غوندې چمن کې

مخامخ کنډونه ښکاري
د غروب زرینې وړانګې
بریښوي لانده برګونه
ځلوي د نیالګو څانګې

له لوېدلي لمَره خېژي
سرې شغلې لکه اورونه
ته واغرونو رارهي کړل
د سکروټو درمندونه

## ورکه مینه

لېرې تـــــرونـــه را درومـــــي
د سپـــــرلـــي نـــازك بـــادونـــه
ګـــڼـــې وربـــځـــې ســــــره اوړي
لـــکــــه تـــور مـــات ســـوي غـــرونه

لکـــه دوه غــلــيم دېـــوان چـــې
يـــو لـــه بـــل ســـره خــښـمــېــږي
لاس پـــه لاس سي، غــيـــږ پـه غيږ سي
پــښــې يــې غــره ســـره جــنګـيږي

رازوانـــه ده تـــولــــى تـــــــه
يـــو مــــرغـــى خـــپــاره وزرونـــه
لـه نازك ســتــونــي رابـــاســـي
د هـــوســـه ډك ږغـــــونـــــه

## ورکه مینه

ته واناخي په هوا کې
ته وانازکوي ګډېږي
د ملګرو غیرته خاندي
هوسېږي او چغېږي

دواړه شپونکي په مخ کې
راروانې څو وزې دي
وږی نس سره ملګري
دوی چاودلې سترې پښې دي

له ویالې اوږده کېږي
د کړیو آوازونه
د ګورم سره مٔلګري
د ګوجر درانه ږغونه

# جهاني ته!

محمد ابراهيم "عطايي"

۱۳۵۳، دلو، ګرديز

د جهان د جهانيانو جهاني ته!
ورلېږم سلام په مينه و باري ته!

ستا جهان دی يو جهان د خوشاليو
د ښکلا و د شرابو د مستيو
هنګامه د لېونتوب او لېونيو
د شرابو او نڅاو او ځوانيو

په شرابو بدمست سوی يو آبشار دی
يا يو کيف دی چې تاو سوی په زنار دی"۱"

"۱". د زنار په نوم زما يو شعر ته اشاره ده، چې عطايي صاحب ته اهدأ سوی دی.

## ورکه مېنه

هر څه وینمه آشنادي
خو پردی راڅخه کور دی
رانه لېرې خپله مېنه
رانه ورك د بابا ګور دی

زما پر ښکلي پغمان اوري
له آسمانه آفتونه
سپیني واورې سره لمبه دي
باندې ګرځي تور دودونه

زما له مسته کندهاره
بوی راځي د وحشتونو
ښني ویالې د وینو کوږم دي
ږغ د توپ او د ټانکونو

## ورکه مینه

د کرملین خروړي سپي به
د پروان پر تړو ګرځي
د نیپالم تنورونَه
د پنجشېر پر تړو غورځي

زه به اوس هم لاهو کېږم؟
رانه هېر به وي دردونه؟
د پردیو پسرلي ته
ورلېږمه به شعرونه؟



پېښنور
۱۹۸۳/۳/۳۰

# اعتراف

لېرې سئ خیالونو له مالېرې سئ
زه له خپله ځانه بېګانه یمه
نه پر سر اورونه لګولای سم
نه د چا د شمعې پروانه یمه

لېرې سئ زما هیلو لېونۍ هیلو
زما سینه کې ځای د نښېدو نسته
زه د ځوانیمرګي خوښۍ کلی یم
کور کې مې کیسه د اورېدو نسته

نور نه د ساقي سره آشنا یمه
نه د خم په طمع ورغلی یم

## ورکه مېنه

نــه مــې د چاجام په شونډو ایښی دی
نـه د چا پـه صف ورکـښېـوتـلی یم

نور مـې لـه آوازه مســتي نـــه زېږي
زړه مــې د خـــیالـونـو هدیره سوله
نـورد چـامــحفـل کـې بلېدای نه سم
مړه سوه دآرزو شمع تیــــاره سوله

مـه غــواړئ لـه مانـه فرهادی کیسې
زما پـه افسـانـو کـې شېرینی نسته
زه لـه خـپـلـه رنګه رابـیـل سـوی یم
زمــاپـه بې رنګی کې رنګینی نسته

## ورکه مینه

ماته د ګرداب خبرې مه کوئ
زه له توپانو راتښتېدلی یم
ما لا د سیلاب څپې ونه لیدې
زه تشو خوبونو وېرولی یم

مالیده چې زما د وړکتوب یاران
څرنګه زمان د مرګي شومه کړه
زما په ګلو بار بوټي یې لاښ کړله
ما یې د ژوندون برخه له کومه کړه

مالیده چې یوړه د مرګي څپو
ډکه له ژوندیو آرمانولړې
ماتې کړې نامردو جلادې لاسو
سپینې د صفاو دالفت کړې

## ورکه مېنه

مالیده چې تورو ځنځیرونو کې
پورته دردېدلي آوازونه سول
ما لیده چې اوسپنې به مستې سوې
مات به په وهلو کې هډونه سول

ما لیده چې څرنګه د ژوند په نوم
څوک د مرګي غېږې ته ورتللای سي
څرنګه دستري آزادۍ پر لار
خپله آزادي قربانولای سي

ما لیده چې ماتې ککرۍ سولې
ما لیده چې ورك يې لحدونه سول
ما لیده چې توی سوې بې ګناه وینې
رنګ د چا برېتونه او لاسونه سول

# ورکه مېنه

واخیستې جونګړې د توپان څپو
ړنګ د خلکو کلي او ښارونه سول
سرې لمبې د توپ له سینې والوتې
اور د چا د هیلو جنتونه سول

زه په غړېدلو سترګو غلی وم
زه د جلاد سترګو وړولی وم
ما د آزادۍ نوم اخیستای نه سو
زه د مرګ له نومه لړزېدلی وم

ما ویله نه چې زما مړی به هم
چیرې د قاتل منګولې ونیسي
زماکورګی به هم چیرته خراب کی څوک
زما انګړ به هم ناولې ونیسي

# ورکه مینه

ما ویله نه چې خزانې سېلۍ
زما د ګلو لښتې رانسکورې کړي
نه چې څه نرۍ څپه یې ووهي
تورې وریځې جوړې باندې سیوری کړي

زه د مرګي ببرې دتاړاك وهم
لیرې له ملکونو اړولی یم
زه د ژوند په لټه د خپل کور څخه
دلته د پردو غیرته راغلی یم

مه اورئ، زما افسانې مه اورئ!
پرېږدئ، نورې زمازمې مه اورئ!
چا چې خپل انګړ بل ته پرې ایښی وي
څئ د هغه چا ترانې مه اورئ!

واشنګتن

۸/ /۱۹۸٤

# دغه زماغيوراولس دی

دغه تــورې سپــينې رېــرې
دا ببـر ـ ببـر لاســــــونـه
دا ســرې ســرې دا غــتې سترګې
لـه هـيبــتـه ډك مـخــونــه
دا لـــه زوره ډکـــې مــوټې
د فـــولادو مــړونـــدونـــه
د فـــولادو پـه سيــنو كــې
غــيــرتــي ډبرين زړونــــه
دا زيـــړې ـ زيـــړې خـــبرې
د زمـريـــو آوازونــــــه
پـه ســرونـو كــې يــې شـور دی
پـه سينو كــې تـوپـانـونـه

## ورکه مینه

دا کړې وړې بګړې به
يوه ورځ سره غونډېږي
تر يو څو جرګو راوروسته
د توپان په دود خروښېږي
د کلو تړې درې به
بيا په وينو اوبه کېږي
د غليم په بنګلو کې
هلته بل ميوند جوړېږي

جلا لا به را ژوندۍ کي
د اکبر په ميخانو کې
درز به واچوې سينو کې
ډار به واچوي په زړو کي
د خنجر عکس به يوسي
جهانګير ته په جامو کې

## ورکه مینه

ستا جهان کې هنګامه د خم خپره ده
د توپان او د موجونو ننداره ده
په شرابو د بدمست یاغي څپره ده
یا د مستو ګناهونو خاطره ده

دې جهان ته دې جهان ټوله حیران دی
پرستش ته په سجده یې زما جهان دی

خو:

اوس نو وګوره دې بل مخ د جهان ته
د محیلو خرقه پوشو وسامان ته
د ریا او د فتنو ودې دوران ته
دې سوځونکی د جفاوو تور زندان ته

## ورکه مینه

د اورنګ شراب به ورکي
د سرونو په کاسو کې

دا تر پښو لاندې قبرونه
دا هېر سوي لحدونه
هر لحد یې افتخار دی
پکې پټ دي داستانونه
دا تاریخ د مېړنیو
د نیکونو یادګارونه
هره پاڼه یې غیرت دی
په هر باب کې توپانونه
دا په وینو روزل سوي
دا لاله دا سره ګلونه
دا د غرونو لوړې څوکې
په لمنو کې لعلونه

## ورکه مېنه

يو د بل په غېږ اغوستي
لاړ پر لاړ پېيلي غرونه

دا وطن د عقابانو
دا ځالې ده د بازانو
دا خيبر دی دا شمشاد دی
قتلګاه د پرنګيانو
دا سرکښه دا مغروره
عزرائيل د دښمنانو

هر سېلاب يې بت شکن دی
هره دښته يې ميوند دی
د توپانه ډکې وربځې
هر يو څاڅکی يې هلمند دی
هر ورکوکی يې دريا دی

## ورکه مېنه

اپریدی دی که مومند دی
پکې غورځې د پلار وینه
د مېرویس نیکه پیوند دی

دا میوند ـ مېوند د پښتونه
دا هلمند ـ هلمند رودونه
له غیرته ډکه مېنه
دا اټک ـ اټک سیندونه
په څپو کې یې رزمونه
په هر موج کې سېلابونه

دا وطن د زمریو
دا هېواد به آزادېږي
دا د مست پښتون اولس دی
دا په وینو کې غورېږي

## ورکه مېنه

په دې جنګ کې يې پلار مړ دی
چې میدان وینې مستېږي
هیبت پروت دی دې لاسو کې
زولنې ځینې بېړېږي
دا یې زړی د طغیان دی
لا سبا توپانې کېږي

بیا به ګرم کې بزمونه
بیا به خپل کې دا دښتونه
بیابه سور دستمال تر ملا کې
بیا به تاو کې چنګ بریتونه
له آمو تر آباسینه
سره یو به کې موجونه
کې به ناځې ښکلې پېغلې
سپینې لېچې سره لاسونه

## ورکه مېنه

کې به ځي کاروان د اوښو
ور آزاد به وي مزلونه
کوچۍ ښکلې به وراخلي
تر سالو لاندې ګامونه

يوه ورځ پر دغه ځمکه
په همدې تنګو دروکې
د آمو مستو څپو کې
د اټک د سيند موجو کې
تر همدغه آسمان لاندې
د همدې خاورې دښتو کې
د بازانو له ځاليه
د عقاب په آشيانو کې
د پړانګانو په کورو کې
د زمريو په زانګو کې

## ورکه مینه

د همدي غرونو لمن کې
دغو ورانو خرابو کې

د سکندر لېچې وې ماتې
د چنګېز پر کور ناورین ؤ
د اورنګ خنجر یې پڅ کې
د بابر زړه په غمګین ؤ
د فرنګ توپ یې خاموش کې
د بابا زړه یې لا شین ؤ
هره تیږه یې پامیر ؤ
هر لښتی یې آباسین ؤ

دغه شین آسمان شاهد دی
دغه ستورو هم لیدلو
دغه لمر، دغه سپوږمۍ وه
دغه وربخو هم کتلو

د سبا د جنګ په طمع
مور دا نن لا خرو ښېدلو
د سرونو بازار تود ؤ
مستانه باندې ورتللو

بیا به ګورئ بیا به وینئ
پردې ځمکه قیامونه
زندانونه به ماتېږي
ترې راوځي به مړونه
شخې - شخې به شملې وي
تور ببر - ببر برېتونه
د ملالې د ننګ چیغې
پر دښمن باندې تاختونه
بریالي به را روان وي
د نېزو په سر، سرونه

## ورکه مېنه

بيا اختر به وي د فتحې
په سرو وينو سره لاسونه
نړوي به سوځوي به
د زاړه دښمن قصرونه
هيبتي ناري به واورئ
لړزوي به آسمانونه

بيا به دا آسمان شاهد وی
زموږ د فتحې د جشنونو
خم به سر په سر تشېږي
د مستانو به جامونو
غليمان به فرارېږي
د ايمل بابا د غرونو

څو چې غرونه وي پر ځمکه
څو سيندونه لا بهېږي

# ورکه مینه

څو مجمر د آسمان تود وي
د جهان پر مخ ځلیږي
څو چې وریځ پر آسمان ګرځي
څو چې څاځکي ترې توئیږي
څو په نوم انسانیت وي
د بشر په نوم یادیږي
د پښتون قام به ژوندی وي
او همدلته به اوسیږي
دغه زما غیور اولس دی
دغه زما توپاني قام دی

کابل

۱/۱۹۷٤اګست

# سبا

ساقي پرون د مستۍ لاپې کړلي
ما د خمار له ترخو شپو ژړله
دوی مستېدل ما د سبا د وېرې
د دوی پر تشو پیمانو ژړله

دوی له طلوع سره فالونه کتل
ما د غروب خونړۍ سترګی لیدي
دوی د جنت په کیسونه مړېدل
ما د دوزخ له کړاوو ژړله

دوی د خیالونو سمندر کې لاهو
ما یې د شپو کې نهنګان ولیدل
دوی د آرام ساحل غوټې وهلې
ما له سرکښو توپانو ژړله

## ورکه مینه

بنه خبر سه دا جهان هم ستا جهان دی
هیر یي نه کړي مرور ځیني انسان دی

تنکی مینې بربادې ږي فنا کیږي
جگر سوزه نابلده نځا کیږي
په ذلت کي یار له یاره جلا کیږي
زړه تورونکي او بې درده جفا کیږي

نه ساقي سته، نه شراب، نه خرابات سته
نه پوهیږو نه مو لاره د نجات سته

پا یکوبي په سرکوبی "۱" دلته بدلیږي
د خوښی دنیا له یو سره ورانیږي
په چمن کي د خوښی گلان زمولیږي
قافله د آرزوگانو ځي باریږي

## ورکه مېنه

دوی لـه نـوبـتـه رقـیـبـان واِیسـتـل
په بربادۍ يې پیمـانـي پـورته کـړي
مـا د زخـمي ښـامـار د قـهر سترګي
لـیدلي ځـکـه مې ورو - ورو ژړلـه

ملګـرو زمـا د مـیخـانو مـلګرو!
زمـا د خـمونو د جـامـو مـلګرو!
سبا هوښـیار اوسئ مستي به نه وي
سـاقي بـه نـه وي پايکوبي به نه وي

کابل

۱۹۷٤/ مارچ

# زنار

ساقي غاړه مې راوړې
په زنار يې زينتي کړه
د ګناه په سېلابو مې
دوږخونه توپاني کړه

په خمار کې لاهو سوی
په مينا مې آسماني که
د مستيو په بقا کې
دا لنډی ژوند را فاني که

ساقي نن مې لاخړوب کړه
سبا هر څه چې پېښېږي

## ورکه مېنه

لکه زموږ چې زاهد هېر دی
دده زموږ ګناه هېرېږي

راکوه یې چې څښو یې
دا ورستی پیالې د مینې
دا د تاك د زړګی وینه
د شرابو ډکې پینې

دا د نن رندان که نه وه
هم به خم پر خم تښتېږي
د زردشت د مذهب اور دی
دا به سر پر سر بلېږي

راکوه یې چې مستېږو
په مستی کې مو هستي ده

## ورکه مېنه

مـــوږ د مـــوج په اور ژونـدي يو
په آرام کـې مـــو نـېـسـتـي ده

د رنـــدانـــو پـــه آئـــين کـــې
د ســاحـــل غـــوټـــې وړې دي
د بـــحرونو تـــوپـــانـــو کـــې
د اوږدې بـــقـــاء ځـــپـــې دي

د هـغـــو ځـــپـــو پـه طـــمـــع
د بـــد مـــســـتـــو حريـفـــي ده
هستـي سـا زه بـد مستـي ده
نـيـسـتـي سـوزه،پايكوبـي ده

کابل

۱۹۷٤- سپتمبر

# وایه شین آسمانه !

وایـه شین آسمانه تاکـوم بـل چېرته لیدلی دی
داسـې ارادې چـې تـوپانـونـه خـپـلولای سـي
داســې اولســونه چې سـېلونـه ایـلولای سـي
داسې کـلـك سوکونـه چـې ټانکونه اوبولای سي

دغســې سینې چې فلکي سېلاب راګــرځـوی
دغسـې طغیان چې یاغي سوي سېلابونه خـوري
دغسـې نـاره چـې اسـرافیـل ورځــخـه وریږدی
دغسـې قیامت چې دوږخونه خوري،اورونه خوري

داسې پهلوان چـې د قــدرت زولنـې وشـلـوي
طلــسم دېـپرېـو ماتوي لا قــانـع کېــږي نـه

## ورکه مېنه

پښتو ته یې د قرن اهریمن په ننواتو ځي
دی لکه زخمي زمری غړومبېږي آرامېږي نه

وایه شین آسمانه تا کوم چېرته اورېدلي دي
داسې حماسې چې افسانې باندې رنګینې سي
داسې کلنګي عزم چې هسکې څوکې کوزې کړي
نکل دفرهادچې ترخې شپې باندې شېرینې سي

کله دې د قهر چیغو چت رالړزولی دی؟
اور دانتقام دې د چا سترګو کې لیدلی دی؟
داسې څوك لرې چې یې مرمۍ پښتوته سجده کوي
کله دې د مرګ پر پوله هم څوك ازمویلی دی؟

تا کله نمرود پخپل انګار کې سوځولی دی؟
بل د آزر زوی دی پردې ځمکه زېږولی دی؟

## ورکه مېنه

دغسې فرعون چې دآسمان پـه لور لښـکرې وړې
تا کلـه پر ځمـکه پرې ايسـتلی ژړولـــی دی؟

وايه شين آسمـانه! تــه هـم کلـه لړزېدلی يې؟
کله د چا غږ لـه درانــه خوبـه پــاڅولی يې؟
کله دې سېلونـه پـه لـمن کې يـاغـي سوي دي؟
کله د سرکښو تماشې تــــه کښېنسـتلی يـې؟

کلـه دې دا غـرونه دا لاښــونــه ازمــويلي دي؟
کله دې د قــهر خــرخښـي پکــې کتلي دي؟
هره پانـه توره هــر يـو کـانـی يې سکروټه وه
بيادې غوځ سرونه د سر کښو هم شمېرلي دي؟

ستاخوبه په يادوي چې د لوړو غروپه څـوکو کې
څاڅکې يوکېدله ترې نه جوړلوی سـيلابونه سول

# ورکه مېنه

وغورېدې پـر ښې د قدرت بېړۍ يې ډوبـې کړې
تندر سـو، بـاران سو، توپاني يې کړلېچونه سول

ستا خوبه په يــاد وي د مـلالـې ميوندۍ چيغې
ســتا خـوبــه يادېږي درېدي او تـورپېکۍ کيسې
هير خوبه دې نـه وي چې دا غـــرونـه زلـزلې لري
هېـرې خو دې نه سوې لـوګر ۍ اوخيبرۍ کيسې

اوس دې زړه ته لوېږي چې داتورې توپاني پرښې؟
اوس دې زړه ته لوېږي چې داتــورې پولادي دړې؟
ورسي دچاپېښوته اوښکې تويې‌کړي سجده وکړي؟
ټينـګې نافـرمانــې دا ســرکښـې پنجشېرۍ تړې

وايـه شـين آسمانه! تا کــوم بل چېرته ليدلي دي
داسې اولســونـــه چې سېلونـــــه ايلـــولاى سي

## ورکه مبنه

داسې ارادې چې تـوپـانـــونه خپلـــــولای سي
داسې کلك سوکـونه چې ټانکـونـه اوبـولای سي

کابل

۱۹۸۰ـ اګست

# څرنګه هلمنده!

څرنګه هلمنده زموږ د چيغو زور دې وليدی؟
وينې دې خپې سوې ساړه څاڅکي دې اورونه سول
مستې دې سوې غاړې د کلونو له خمار څخه
ختم دې خوبونه سول سر کښه دې موجونه سول

واغوستل ژونديو کفنونه د مرګي په نوم
وښورېدې شنختې را ژوندي مو لحدونه سول
راغی د تاريخ د حوادثو توپاني بچی
ډک يې د دښمن له ککريو ګړنګونه سول

څرنګه هلمنده دا اولس د ايلېدلو دی؟
څرنګه هلمنده دا توپان د ګرځېدلو دی؟

## ورکه مینه

تریـــح تـــاراج د آرزوګانـــــــو راخـــــور ســـــوی
ســـــتا پردې جـــهــــان لـــــوی غـــم را نسکور سوی

نو: مـــنا دی زمـــونږ د جـــهـــانِ جـــهـــانـــی ځوانه
دا دوهــم جـــهـــان جـــلا نه کـــړي لـــــه ځانه

"۱". پایکوب او سرکوب زما دوه شعرونه دي چې په دې مجموعه کې نسته.

## ورکه مېنه

زوی د حوادثو حوادث یې زېږولي دي
وایه زمان ته دا رستم د غوزارېدلو دی؟

نه مې درته ویلې چې ژوندي به مړه اورونه سې
څاڅکي به یو کېږي ځیني جوړ به سیلابونه سي
یو به سي، راویښ به سي، قوي به سي،رهي به سي
مات به زندانونه سي خپلواك به اولسونه سي

نه مې درته ویلې چې شاهد به آسمانونه وي
ژوند به وي، بری به وي، د فتحې به جشنونه وي
تښتي به، پټېږي به مېلمه او کوربانه رهزن
موړ به یو قاضي به وي د عدل به حکمونه وي

بیا به ته شاهد اهریمن د پرزېدلو يې
بیا به ته شاهد د نمرودانو د سوځلو يې

## ورکه مېنه

بیا به د کرملین د سپیو کوکې اورېدلای سې
بیا به ته شاهد د انتقام د اخیستلو یې

بیا به ته شاهد یې چې آزاد به دا دښتونه وي
بیابه ته شاهد یې چې خپل کړي مو داغرونه وي
شپون به وي، شپېلۍ به وي، رمې به وي شنېلۍ به وي
پلنې به کېږدۍ وي پکښې بل به زموږ اورونه وي

څرنګه هلمنده زموږ د چیغو زور دې ولیدی
ویښې دې خپې سوې ساره څاڅکی دې اورونه سول
مستې دې سوې غاړې د کلونو د خمار څخه
ختم دې خوبونه سول سرکښنه دي موجونه سول

کراچی - ۱۹۸۱/۱۲

# خزان

زه هم شور د خرابات وم
زه هم سوځنده لمبه وم
ډېرې اوښکې مې ژوندۍ کړې
زه هم ویښه هنګامه وم

زه هم ژوند وم د بزمونو
زه هم رنګ وم د سازونو
زه هم بنګ د پیمانې وم
ښکلی لار وم د اورونو

ماهم تش کړله خمونه
ماهم مات کړل ګیلاسونه

## ورکه مینه

ما هم نوش د شوندو اورکړ
ماهم توی کړله خالونه

ماهم تاوکړی د چا څوني
ماهم واخیستی مچکي
ماهم وشکول ګلونه
دوي منګولي مي کړي ډکي

ماهم لوخي کړي پیغلوټي
ماهم وشلول لاړونه
ماهم بنخ کړل ګناهونه
ماهم وکړل اورونه

ماهم ستړي میخاني کړي
ماهم سپیني توري شپي کړي

## ورکه مینه

مستول مې ژوندی لاره
ماهم ويښې قافلې کړې

موږ هم ومسل سباته
موږ هم رنګ کړل غروبونه
موږ هم روڼې اوږدې شپې کړې
موږ هم تور کړل خلوتونه

موږ هم مستې کړې ګل څانګې
موږ هم وسپړل ګلونه
موږ هم ويښې ترانې کړې
موږ هم وتخنول زړونه

د هستۍ مسته بېړۍ مو
ناګهانه توپانې سوه

## ورکه مېنه

د امـــيـــد فـــردوســــي لاره
شـيـطـانـي سوه، دوږخـي ســوه

وغـــوتـېـو تـــه مــــوسيخ ســول
د خــــزان وحــــشـي بــادونــــه
پــه ګلشن کــې مو شروع ســـول
د خر مســتــو پـــايـكوبـــونـــه

سره بـــلا ســـوه را نـــازلـــــه
پـــر صـــفـــونــو د يــــارانــــو
د كمون طــاعــون تـــبــاه كړل
مـحـفـلـــــونـه د رنـدانـــو

کابل - ۱۹۷۹/فبروری

# د تاشکند لـــــور

د تـــاشكــنــد لــوري ښــكلي اوزبكي
پـــه حـــسن حـــوري ښـــايستي ملكي
لــكـــه پـــه ګـلــو پـــوښلي لــښـــته
پـــر مـــلا غبرګـېږی، راپورته كـېـږي
ډكــه لـــه مـــهره، ډكـــه لـــه نـازه
چاتـــه مسكی شي، چـــاتـــه خـنـدېږي
لـكـــه پـــه غـــره كي سهاری زركـه
پـــر لاري دروميـ تـــــه وانـــښـېږي

## ورکه مینه

ته وا رقیبې، ته وا ګډېږې
ته وا غوټۍ یې دا اوس غوړېږې

څېرې به زوړ کې دا ښکلی حسن؟
پر چا به تاو کې نازك لاسونه؟
څوك به دې زېښنې دا سورکۍ شونډې
څوك به دې لخ کې داسپین ورنونه؟
څوك به دې ستایي داهوسۍ سترګې؟
څوك به دې تاو کې دا تورې څونې
پر چا به پلورې د ناز کتنې
دا کړې وروځې داسترګې بونې
دا نرۍ غاړه، دا جګه ونه
دا کړېدنې پورته کېدنې

## ورکه مینه

ته هم پوهیږې چې ښایسته یې؟
ته هم پوهیږې چې افسانه یې؟
تا هم سوځلي د چا خوبونه؟
ته هم اورونه، ته هم لمبه یې؟

کاشکې چې روغ وای ستا وزرونه
کاشکې چې مات وای دا قفسونه
چې الوتلای، پورته کېدلای
چې پې کول دې لیرې مزلونه
تا خرخولای، ما رانیولای
د بورو سترګو بیده نازونه
افسوس چې نسته د نجات لارې
بیځایه سوځې تنها ویلیږې
رڼا دې نه کړل خپل خلوتونه
د څو ناکسو پر کور بلیږې

## ورکه مېنه

کــاشکــې چــې تــله وای چې الواته وای
چـېــرتــه چــې زه وای او هلته تــه وای
مـــا پوهولای چـــې ښــایســتــه یــــې
مـــا درښــودلای چـــې بتخـــانـــه یې

تاشکند

۱۹۸۰- سپتمبر

# مقدمه

که زه د جهاني په خای وایم، نو د دې مجموعې نوم به مې د "رزم او بزم نغمه" ایښی وای، ځکه پدې مجموعه کې که له یوې خوا د خونړیو جګړو لړزوونکي داستانونه په پوره شور او خوږ بیان شوي او د افغانی ځوانانو د سرو لښکرو په سرو وینو سره لاسونه د افغانی سر درو د بازانو له سرو منګولو سره د شاعر د رنګینو خیالونو په قلم د هېواد د پرتمینو غرو د پاسه سره شفق کې نقش شوي دي،

# ګــــړوبه کلا

په لــويه لارکې د شېلی تــر څنګه
ګــــړوبــه کــلا د تـــورو خونــوســره
د زمـــانې د ســيلابـــونـــو شـــاهــد
د شـــوړېدلـــو دېـوالــونـــو ســره

دا لــه پـخــوا څـخه هېر سوی کوړګی
دورکــو مېــنــو داســتانــونــه لــري
دا د مســــتی دا د خمــار دنـــياګــی
څـــه نـــاويلي شان رازونـــه لــري

د پــيمانــی د څنډې مــات تــوکــری
د ګـنـاهـونو خـــاطــرې يـــــادوي

## ورکه مینه

تیاره کونجونه یې د رمزپه ژبه
اوس هم سینه کې ولولې پاروي

د دې کلا په هره خونه کې به
سپینې سینې چا لڅې کړی نه وي
د وحشی مینې په بېرحمه حملو
به یې غاښونه پرکښې کښلی نه وي

دلته به هم څه غټو بورو سترګو
د چا له سره عقل وړی نه وي
نازکو ګرمو پستو شونډو به هم
زړه او کوګل ورسوځولی نه وي

داوښتو رااوښتلو زګېروی
د چا احساس لېونی کړی نه دی؟

## ورکه مینه

د لېوني هـــوس بې صبره پنجو
د چا ګرېوان هم ورځيرلی نــه دی؟

دلته به هم تاوده پاسته ورنونه
د چا پــه غېږکې لوبېدلی نه وی؟
سپوږمۍ به هم په غلي غلي راتلو
د خلکو پټې لځې کـړی نـه وي؟

د شهوتي تـوپان بدمستـه ځپو
د چا سينه طغياني کړې نــه ده؟
د غـلا کتنې ببرنـدوکې مينه
يو وار ناڅاپه ياغي سوې نه ده؟

د ځوانۍ بنګ د ساقي سپينو لاسو
لــه لارې هــم څوك اړولي نــه دي؟

## ورکه مېنه

چا چې خبرې د ګناه کولې
دوی په کټ کټ باندې خندلې نه دی؟

پر بيدو شونډو د مچکو چپاؤ
څوك له خوارړه خوبه ايستلی نه دي؟
د خوبه ډکې بېرېدلې سترګې
د هوس غېږې ته ورغلي نه دي؟

د دې کلا له هرې رنګې سره
د چا بېباکه هوسونه ښخ دي
د ويلې سويو سوځېدلو شمعو
په شاهدۍ باندې عشقونه ښخ دي

دې کنډواله کې ګناهونه کېدل
د ثوابونو څنځيرونه شلېدل

## ورکه مېنه

ځو د جهانـــه بې خبـــرو مـــستو
د حـسن ښارتـــه تــاړاکـونـه وروړل

شېلــه هغسې لابـــاړاسکي وهــي
تندر هـغسـې لا غــړومبېږي ورتــه
د هېرو سويــو لحـدونـــو تـــرڅنګ
لا له هـغسـې زرغـــونېږي ورتـــه

خــو لـــه کلا څخه نغـمې نـه راځـي
د پټـې مينې زمـــزمې نـــه راځــي

کابـــل

۱۹۷۵/جون

# زمـــــان

د ژوندون بېړۍ لاهـــو ده
د زمان په تـوپـانـوکـــي
د مـرمـوز هـدف پـر لـوري
پـه ناپـايـه طـغيانـو کې

د هستۍ پـه نـوم نيستي ده
د نيستۍ پـه نـوم هستيږي
نـابلــده يې مـسير دی
تـکرونه خـوري تـيـريـږي

هم وحشت لـري پـه غـيـږ کې
هــم پـر مينه مـين زړونـه

## ورکه مېنه

د افق خونرېزه ژبه
د طلوع سپین پیغامونه

پکښې هر څه ناروا دي
پکښې هیڅ ناروا نه دي
څه بېړۍ څه یې سفر دی
دا پر کومه خوایې تله دي

څه ناپایه سفرونه
څه ناکامه کاروانونه
د جرس په ماته ژبه
د ژوندون بېده رازونه

څه غروب څه خوني وړانګې
څه آسمان څه تنورونه

## ورکه مېنه

څه له اوره ډکې وریځې
د انګار په زړه کې غرونه

څه د وینو ډکه غېږه
څه ناترسه سوغاتونه
څه خاموشه جلادي وه
څه د قهر درمندونه

څه مستي څه مکېزونه
څه ساقي څه ډك خمونه
څه ګناه څه دوږخونه
څه شېخان څه عذابونه

څه محشر د عشوه ګرو
څه لوڅ سوي سپین ورنونه

## ورکه مېنه

څـه غمزې څـه ځوانـې مېـنې
د نـازونـو چـپـاوونـه

څـه بېـبـاکـه هـوسـونـه
څـه رښـتلي پـاك عشقونـه
څـه ښـايستي روښـانـه سـترګي
څه کـاتـه څـه مست رمـزونـه

څـه نـيـمـګـړي آرمـانـونـه
څـه د اوښـکو سـيـلاوونـه
څـه نـامراده د غـم کـړېـږي
څـه بـد بخـتـه مـنـزلـونـه

د سـيـنو پـه قـفـسـچو کـې
خـامـوش سـوي امـيـدونـه

## ورکه مینه

د لحد په زندانو کې
بیده سوي دي څه زړونه

څه حسنونه ذلته ښخ سول
څه عشقونه تباه کېږي
څه ښایستې سترګې سوې پټې
څه د سوز اوښکې ورکېږي

څه زګېروي د چا له یاده
وچولی د زړه وینې
د چا سپینې ورځې تورې
د چا تورې شپې سوې سپینې

څه د شور پیمانه زړونه
څه له اوره ډکې وینې

## ورکه مېنه

نوله بلې خوا شاعر د افغاني جهان رنګينې افسانې هم د تصور په رنګينه دنيا کې تصوير کړي او د افغاني پېغلو سرې منګولې، سره بارخوګان او سرې شونډې يې د سره سالو تر ګل ګون انعکاس لاندې د تخيل په آزاده او بې قيده نړۍ کې کېښکودلې، مچ کړې او زبېښلې دي.

دلته که له يوې خوا د افغاني جنګياليو د تورې خرپ او شرنګ ستايل شوى او د باتور افغان ولس د تورې، زړورتيا، سر تېرى او مېړانې ترانې غږول شوي، نو له بلې خوا د ژوند ښښونکو يو غړپ او افغاني رباب زړه وړونکى ترنګ هم په ډېر اوچت شاعرانه اندازکې تصوير شوى او د زړو ميکدو او پښتني تاريخي حجرو کيفيت په ساحرانه الفاظو تازه شوى دى.

دلته که له يوې خوا د افغاني مېړونو پولادى او له

## ورکه مېنه

د احساس ژبې ګونګې سوې
چا سنګسار کړې پاکې مينې

ځوك له رازه سره ښخ سول
چا نيمګړي څه ويلي
چا د اوښكو ډكې سترګې
يو وار شاته اړولي

ځوك په هر څه باندې پوه سول
چالا هيڅ نه وه ليدلي
چالا څه شكوه كوله
ځوك په ډكو زړونو تللي

ځومره دلته خندېدلي
د نسيم د غېږ ګلونه
څه غنچې نيمه خوا سوي
څه خزان څه يې بادونه

## ورکه مینه

څومره سترګــــــي ڤهرېدلي
څــــومـــره نورې سوی نـمـجنـــې
څـــه لاسـونـو کـړلـې ورانـــې
د آرزو د ســــــومــــاپـيـنــــې

څـه مـجـنـون دښـتـونـه پی کـړل
څـه فـرهـاد سوري کړل غـــرونه
څـــه لاسونه ګناه کــــار سـول
څـــومـــره وځــــورېدل زړونــــه

څه سـکـنـدر څـه لــېـونـتـوب ؤ
څـــه ســرکـــښـه مســت آسونه
څـه تـاړاك څـه پـايـــکـوبـي وه
څـــــه د زغـرو تــوپــانونه

څـه چـنـګـيـز څـه نــاتـارونـه

## ورکه مینه

څــه وحــشــت سـوي ښـارونــه
د حســرت په کنډ والــــو کـې
پـرې ســرونــه مــات هډونـه

زمــان هــر څـه ســره يــوړل
د آرامـــي نـــړۍ خــولي نــه
د ژونــدون وروستـي پــړاوتــه
د رازونــو خــزانـي تــه

هلتــه هــرڅـه خــاورې کيــږي
هلتــه هيــڅ شکايت نـــستــه
هـلتـه تـولـه سـره خـپـل دي
هـلتــه هيــڅ ملامـت نستـه

کابل - ۱۹۷۷/مارچ

## شاعر

چې د ویښې نرۍ سترګې
د تاریکې شپې کوربه سي
د ډیوې لمبه خاموشه
پرې تیاره ماښامیلمهٔ سي

د ساقي په پیمانه کې
نیښتیځلی اور ختمېږي
د مستۍ له تاوده بزمه
چې خړوب حریف ستونېږي

د مینا په وروستۍ او ښکو
چې خمار زړونه او بده سي
چې وروستۍ پیالې شرنګېږي
او د کوچ نغمه توده سي

## ورکه مینه

چې جهان په پټو سترګو
په خيالي تال کې زنګيږي
د خپسې توره غيږه
د رڼا پرسر خپريږي

تر يو لنډه مزلګي وروسته
قافله پر تمبېدو سي
چې ايلچي د سبا راسي
او د نن جنازه يوسي

هلته ليرې په يو کونج کې
نو نرۍ لمبه بليږي
د هوس له ښکلي ښاره
يو پرديس پکښې اوسيږي

د قلم تر خوله راباسي
د خوږ من زړه فريادونه

## ورکه مینه

د سینې په قبرستان کې
ښخوي ځواني عشقونه

له ثوابه يې پر هېزدی
له ګناه توبه ګار سوی
هم زاهد ورته په قهر
هم له بزمه چاترټلی

کله روڼې روڼې اوښکې
پر نامراده ګرېوان توی کی
نړوي د ژوندون خونې
د قبرونو شنختې بوی کی

په دې نرمو - نرمو ګوتو
نړوي د سکوت غرونه

## ورکه مينه

د نازك احساس په تال کې
سوروي نوي سازونه

د رنګين افق په خوله کې
ورکوي د زړګي وينې
د شفق له مخه اخلي
د هوښياري مستۍ پينې

د الله ځانه سره سوځي
په تياره کې چې ويلېږي
که شاعر نه دی، نو څوك دی
چې زګېروی يې رار سېږي

کابل
۱۹۷۷/اپريل

## پیر مغان

پیـرمغـان د مـیخـانـې په کـونج کې
پرون مـیـخوورتـه ورو ـ ورو، ویلـه:
دمستۍجام یې وګـرېوان ته توی سـو
پاس یې د سترګو تـر کـونجو کتـله

جام د جمشېد، خم د سوماکه نه وي
خو دا ویجاړه میکده خـو لـــرو
سپیني سیـنې بنګك او نڅاکه نه وي
خواږه یـاران تـوده نغمـه خـو لـرو

کـه دا زړې نغمـې مو نوې نه کړې
که دا ویجاړې مـو آبـادې نـه کړې

## ورکه مینه

که د غوټیو د سپرلو په نوم
خزاني تندې مو بربادې نه کړې

نو دا ویجاړه میکده به نه وي
خواره یاران توده نغمه به نه وي

کابل

۱۹۷۵-جون

# زه شاهد وم

مابه لیده چې دباغوان په لاس غوټۍ زمولېږی
مابه لیده چې دساقي په لاس خمونه رنګسول
زه د جامونو د لوټلو شاهد
زه د غوټیو د زمللو شاهد
د میکدې د ورانولو شاهد
ما د دې بڼ د بوټې - بوټې لانسپدل ولیده
ما به سپرلي کې دزاغانو پایکوبونه کتل
ما دنسیم په غېږ کې زېړی دخزان اوریدی
ما د بلبلو ځوانیمرګې نغمې
ماد ګلونو چپاوسوې وږمې
ما د پیمالو ارزوګانو زګېروي

## ورکه مینه

هیبته ډکو بدنونو، کړو ورمېږونو، آهنینو متو، ببرو سرونو او لوخو، خو مظبوطو پښو توصیف د شاعر شعرته ډیر اوچت صلابت ورپه برخه کړی، نو له بلې خوا د افغاني پېغلو د نازکو اندامونو، هسکو غاړو، سپینو مړوندونو، تورو څڼو، بربنډو بدنونو او پستو ورنونو رنګین خیال نوی شانته لذت او غذوبت وربښلی دی.

په دې مجموعه کې له یوې خواله روسي یرغلګرو سره د افغاني شازلمو د خونړیو جنګونو، مضبوطو ډغرو، بې پروا غورځنګونو او د قاطع تاړاکونو له هیبته ډکې سندرې غږول شوې، نو له بلې خوا د وطن د مستو پېغلو د اتڼونو، نازونو او کرشمو تصویرونه کښل شوي دي.

دلته که شاعر له یوې خوا د بې اسرې یتیمانو سرې سترګې او د بورو میندو د طوفاني اوښکو رانه څاڅکي ژړلي،

## ورکه مېنه

ماله وحشته رپېدلي زړونه ټول ولیدل
راویښوئ مې ولې؟
راپاڅوئ مې ولې؟
دا رغوئ مې ولې؟



ما به لیدل چې د زمان توپان وهلی بېړۍ
د ګردابونو طلاطم کې رنګه بنګه خوځي
د څپو غېږې ته ورخرمه سي ډوبېږې پکښې
د جاله وان له نامردیه څخه
د دې ظالم له بېباکیه څخه
بېړۍ له پرښو سره وجنګېږي
د غرقېدو له وېرې ټوله بېړی وال چیغې کړي
څوك د بېړۍ تیاره کونجونو ته له وهمه ځغلي
مال او اولاد هېروي
د ډیوې څنګ ته له قاه قاه سره غاښونه بریښي

## ورکه مېنه

دا جاله وان دی ظالم
زه يې خندا پېژنم
د دې لېوه سره پخوا هم څه آشنا غوندې وم
ماهرڅه ولیده، خو هیڅ مې لاویلي نه دي
زه د بېړۍ د ډوبولو شاهد
زه د توپان د خوځېدلو شاهد
ماله آرام ساحله تېښته لیده
زه په لوی لاس د غرقېدلو شاهد
را وینبوئ مې ولې؟
را پاڅوئ مې ولې؟
دا ږغوئ مې ولې؟

  

ما به لیده چې د غوغا د چوپېدو د پاره
سپیني آبدارې تورې څه په بې آبۍ سرې کېږي
تر يو څو سووکرړو ورو سته څه کمزورې چیغه

## ورکه مېنه

وروستي نفس د زولنو په شرنګهار کې ورك كي
يو لا لهانده زړه آرام غوندې سي
يوه سينه د هديرې په رسم
يوه کوچنوټې قفسچه کې هلته
يو لوی جهان لره مکان پيداکې
يوه نری شانې لمبه تورې تيارې ته درومي
دا بدي سکوت په غبږ کې حرکت ډوبېږي
څوك د ژوندي مرګ په ارزو د ګولۍ لارې څاري
څوك بياد مړه ژوندون بقأته له ايمان تېر سول
زه د زګېروي د چوپولو شاهد
زه د ترټلو د لوټلو شاهد
ماتا ړاکونه چپاوونه ليدل
زه د سرو څاڅکو تويولو شاهد
را وينبوئ مې ولې؟
را پاڅوئ مې ولې؟

## ورکه مینه

دا ږغوئ مې ولې؟



مابه لیده چې د جلاد په وینو سرو منګولو
ما به لیده چې دلېوانو د ځیرلو وهم
خلك د ورورپرجنازه نځول
خلك په ډکو ستونو وخندول
ما به لیده چې ځوك د مینې د لرلو په تور
ولې سنګسارسو، ولې ټولو ګناه کار وباله
ما به لیده چې خلکو لوی- لوی ګناهونه ستایل
هرچا چې ښې منګولې سرې کړې قهرمان قبول سو
دلته قاتل قضاته نه کشېږي
دلته چې سر وهي سردار یې بولي
دلته د سرو لاسوپه نوم عبادتونه کېږي
سجده هغو ته ده چې زړونه یې سینو کې نسته
زه بې ګناه ګناهکاران پېژنم

## ورکه مېنه

ما ګناهکاره جنتيان وليدل
زه د پايکوب د سرکوبونو شاهد
زه د قاتل د سرو لاسونو شاهد
چاد منبر پر سر ګناه ستايله
خود ثواب د سنګسارونو شاهد
څوك چې زرګونه قتلوي خلك بيعت ورکوي
هغه چې وينې پاکوي، هغه دوږخ ته درومي
د ګناهونو د تميز پر ميدان
د دې نړۍ د عدالت شاهد يم
راويښوئ مې ولې ؟
راپاڅوئ مې ولې ؟
دا ږغوئ مې ولې ؟



پرېږدئ چې هرڅه په سينه کې ولحد ته يوسم
د شعر ژبه مې ګونګۍ ښه ده پرې سوې ښه ده

## ورکه مینه

په سترګو وینم خو چې نه یم ګرځېدلی ښه دی
دلته لیدل او کول ښه دي څه ویل کفر دی
په رڼو سترګو ژوندي ډېر اوسېږي
خو څوك چې ژبه لری سر نه لري
دلته لاسونه پرېکېدل ژبې یې هم غوځې کړې
خو سترګورو هرڅه ولیده ګونګي پاته سوه
زړه ته مې نه لوېږي چې زما د ژبې دوه بخري
د کلو پوړندې تازه کي انګارونه جوړکي
زه د انګار خاموشول نه غواړم
خو د چااور هم بلولای نسم
څوك له بخري د اور طمع لري
زه یې سکروټې لرم ځان په سوزم
پرېږدئ چې وسوځېږم
پرېږدئ چې وکړېږم
چېرته به زه هم د ویلوپه تور

## ورکه مینه

د دې لیدنو د ویلو په تور
د ژبورو په دود خپله سزاګۍ وویـنم
زما په مرئ باندې به هم د چامنګولې سرې سي
راویښوئ مې ولې ؟
راپاڅوئ مې ولې ؟
دا ږغوئ مې ولې ؟

کابل

۱۹۷۷ - سپتمبر

# زه به شهید یم

ګراني یو ورځ به مې د قبر سرته ویني ژاړې
زه به شهید یم رشتیاسوي به وي ټول خوبونه
راته زنګیرې به د فکر په دریاب کې لاهو
او دریادېږي به نامراده د ځوانۍ خیالونه

ما د واده په شپه لاغاړې درته خلاصې کړلې
ماویل لنډ دي زمونږ د مینې او خوښۍ مزلونه
زه د ناپایه جنګ لښکر ته برتي سوی یمه
زه د ګولۍ لارې خارمه، ګولۍ زما ګامونه

درته یادېږي هغه زمونږ دکلي ښکلي ناوې
چې د رستم شهید پر قبر باندې وغوړېده

## ورکه مېنه

لا يې لاسونه په نکريزو لا يې تلي سرې وې
چې بيادبخت له بيده ټاله څخه وغورځېده

درته يادېږي هغه بله ببر سرې کونډه
چې لېونۍ غوندې به ګرځېده په کلي کلي
هغه يکړ مجاهد زوی يې چې په بم کې والوت
چې غبرګې لونې يې اورونو دنيپام سوځلي

زه به هم نن وي که سباوي ديارانوسره
دابدي سکون په غېږ کې زنګېدلی يمه
مابه هم يادکي يو څو ورځې دمورچل ملګري
نوربه يوازې ستاپر شونډو اوسېدلی يمه

ګرانې زما زوی به په لمبه دانتقام لويوې
ورته به وايې چې روسانو دې دی پلار وژلی

## ورکه مېنه

په الاهو بـه يې تـازه کـې د غـضب اورونـه
ځو چې دوږخ کې غلـيمانـو لـره کـوراو کلی

د ابـــا قبرتــه يې راولـــه خالـپوښـو لـــره
او هره شپه ورتـه کوه د ګوډ غــازي"۱" نکلونه
چې بـې وطـنه بلــه هيــڅ ليلاو نــه پېـژني
دوينو ځاځکو ته يې ورکـه ميـوندي اورونــه

زمادزوی نوم به يا "شېرشاه"يا"خوشالخان"راايږدی
په غوږکې ورکه د"مېرويس" او"احمدشاه"نومونه
چې زما لـه مســته کندهـاره بې خبره نــه سي
سنګر،سنګريې هره لويـشت په وينو سره دښتونه

ګرانـې يـو ورځ بـه مې د قبر سرتـه وينـې ژاړې
زه بـه شهيد يم رشتياسوي بــه وي تهول خوبونه

## ورکه مېنه

نو له بلې خوايې د ګل د نازکو پاڼو د پاسه د شبنم مرغلين څاڅکي هم نه دي هېر کړي.

شاعر که له يوې خوا د زړو ميکدو له خُمونو، ښايسته ساقي او سازونو،... جامونو او خوږو يارانو او رندانه محفلونو په ياد ساړه اسويلي ايستلي دي، نو له بلې خوا يې د جګړې د ميدان او بمونو، ټانکونو او توپونو او وحشيانه استبداد او ظلمونو د لاسه تودې چيغې هم کړي دي.

که زما دخيال د مرغه وزرونه د زمانې د استبداد ښکاري نه وای زخمي کړی، نو باور دی چې د دغه مجموعې په لوستلو به بيا په پرواز راغلی وای، د هېواد په پرتمينو سردرو، دنګو غرونو، پراخو دښتو، خالي باڼدو، سپېرو کنډوالو، له وېرې او وير نه ډکو ښارونو، خوروورو ولسونو، بې شماره پردېسو به ګرځېدلی وای او د دې

| شمیر | عنوان | مخ |
|---|---|---|

## د کتاب پېژندنه:

| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | ورکه مېنه |
| ويناوال | : | عبدالباري جهاني |
| لومړی چاپ | : | ۱۳٦۷ لمريز کال - ژمی |
| دويم چاپ | : | ۱۳۷٦ لمريز کال - ژمی |
| د چاپ ځای | : | پېښور |
| د چاپ شمېر | : | زر ټوکه |
| ډيزاين/کمپوز | : | اسياسافټ |
| کمپوزر | : | حفظ الله |
| خپرونکې | : | صحاف نشراتي مؤسسه |

Published by:

*Sahaf Book Pulishing Institution*

Quetta

1997

بسم الله الرحمن الرحيم

# اهداء

د بزم او رزم د نیمګړو ترانو دا وړه مجموعه د پښتو ژبې هغو شاعرانو ته اهداء کوم چې تقدیر محکوم پیدا کړي، واکمنانو یې پر خوله مُهرونه وهلي او زمان یې قلمونه زولانه کړیدي.

# فهرست

| شمیر | عنوان | مخ |
|---|---|---|
| ۱۸. | پیرمغان | ۸۷ |
| ۱۹. | زه شاهدوم | ۸۹ |
| ۲۰. | زه به شهید یم | ۹۷ |
| ۲۱. | ژوند | ۱۰۱ |
| ۲۲. | اوښکې | ۱۰۳ |
| ۲۳. | ښکلا | ۱۰۵ |
| ۲۴. | مرګ | ۱۰۷ |
| ۲۵. | زما شعر | ۱۰۹ |
| ۲۶. | پښېمانه به سې | ۱۱۲ |
| ۲۷. | بغاوت | ۱۱۵ |
| ۲۸. | بیده خیالونه | ۱۱۹ |
| ۲۹. | زما خزان | ۱۲۱ |
| ۳۰. | د سیند لور | ۱۲۴ |
| ۳۱. | هېره مستي | ۱۲۶ |
| ۳۲. | زما کندهاره! | ۱۳۰ |
| ۳۳. | د هستۍ قبر | ۱۳۴ |
| ۳۴. | پردی انګړ | ۱۳۶ |
| ۳۵. | ایړ سالاري | ۱۳۸ |
| ۳۶. | لېونتوب | ۱۴۳ |
| ۳۷. | تنکۍ غوټۍ | ۱۴۵ |